# د هلي د پښتنو په وخت کښې


مؤلف «په اردو ژبه» خان غازي

مترجم: «په پښتو ژبه» عزيز الرحمٰن سيفي



پښتو ټولنه

۱۳۳۸

# اهداء :

پښتو ټولنه دبیاخپلوا کۍ دګټلو د یو څلو پښتمی

کـلیزی په‌تقریب دا کـتاب د هغوسپېڅلو شهیدانو روح

ته وړاندی کـوی چه د افغانستان استقلا ل د دوی

د سرښنـدنـی او ایثا ربیه ده.

(۱٤۹) دپښتو ټولنې دخپرونو پر له پسې لمبر:

# دهلي دپښتنو په وختو کښې

اردو مؤلف: خان غازی «کابلی»

مترجم: عزیز الرحمن «سیفی»




د

پښتو ټولنې

له خوا

د طبع شمېر: ۱۰۰۰ جلد

دچاپ نېټه ۱۳۳۸ کال «زمری»

# سریزه

دا کتاب دهغو لوړو مانیو ،جگو ځلو، ښکلو کلاوو، او درنو ودانیو حال ښيي چه له ۵۹۰ هق کال څخه تر ۹۶۱ هق کال پوری په ډهلی کښې د تېروشوو افغانی سترو پاچهانو او درنو امیرانو یادگارونه دی او زیاتره ئې اوس دخپل عمرانی ژوند وروستۍ سلگۍ وهی.

موږ باید دغو تاریخی ودانیو زړو کنډوالو ته په سطحی نظرونه گورو،

ددې راپریوتو دېوالو اوړنگو چتونو په غېږ کښې زموږ د تېر برم او جلال داستانونه پراته دی.

ددې ورانو کنډرونو هره گټه دافغانی تاریخ هغه له نظره لوېدلې پاڼه ده چه زموږ دپخوانی عظمت او افتخار نکلونه پکښې لوستل کېدای شی.

زه باورلرم چه ددې کرښنو (ویرانو) دژړونکو حالاتو لوستل به په زیاترو قام پرستو افغانی زړونو کښې سوی و مومی.

او ډېری اجتماعی لوړتیا به ته منتظری سترگی به او ښلنی کړی؛

مگرزه په دغه ځای کښې لازم بولم چه گران لوستونکی د ې ټکی ته متوجه کړم:

هغه تو دوخه چه ستاسی په سپېڅلو زړو کښی دتېر برم او جلا ل په ارمان مونده کېږی په او ښکو ئې مه سړ وی!!

او ښکی دنامېندی نخښی دی او نامیندی د مرګ مقدمه.

په لکو ځاځکی او ښکی دقامو نو دعظمت په راستنو لو کښی هو مره کار نشی کو لای لکه یو ځاځکی هغه خولې چه د ځلمو له غښتلو مو ټو څخه دپاکی هڅی په حکم داجتماعی لو ړ تا به لاره کښی څڅېږی

په پای کښی ښاغلی مؤلف (خان غازی کابلی) او ښا غلی متر جم (مولانا عزیز الرحمن سیفی) دوا ړو ته کور و دا نی وایم چه دا سی یو اثر ئې افغانی جامعې ته وړاندی کړ چه یقیناً به دتېر عظمت داحساس په ژوندا نه کښی څرګنده اغېزه و لری.

عبدالشکو ر رشاد

( د پښتو ټو لنی مرستیال)

---

بسم الله الرحمن الرحیم

مورخینو دډیلي تاریخ ډیر پخوانی ښودلی دی، دهندوانو دعشق جذبی دډیلي جوړښت ترحضرت مسیح (ع) هم څوزره کاله وړاندی بیولی دی لیکن زما مطلب په دی ځای کښی تاسی ته دهغه ډیلي د افسانی وړاندی کول نه دی چه هغه کله داندر پرست او کله داند ر پت او یا (هستناپور) په نومونو یادشوید ی بلکه زما مطلب تاسی ته دهغه ډیلي دافسانی وړاندی کول دی چه د(رای پتهورا) د اقتدار بیرغ په باندی ر پیده او هغه ته دځان رسوا او په هغه د(پانی پت) او (تراوړی) میدانونه د سرتیرو پښتنو او په دغه ډیلي ډدمینو راجپوتو په وینو رنگ اوسره شویدی، په دی ځای کښی باید داخبره هم هیره نه کړی شی چه ترپښتنو پخوا دکومو خلکو داقتدار بیرغ چه په هند ر پیده هغه ټول د آرین له نسل او تکم څخه او دهغو مشران هم دآریانا له خاوری (یعنی اوسنی افغانستان) څخه راغلی او دگنگا او دجمنا په ناوو او شیلو کښی میشت شوی وو.

نو په دی لحاظ که داوویل شی چه دهند راجپوت راجا گان هم په خپله (آریــن) وونـو بـی ځــایه بـه نـه وی، او په ډیرو پخوانو زمانو کښي دلویي آریانا حد و د دله جنوبی هند، خلیج بنگال اورنگون نه

لیولی ترجیحون یعنی آموسیند پوری ځپاره اورسیدلی و وپه، دی تول ه ارته او پراخه مځکه دمختلفو کړ رنیوشهز ادګانو (راچپوتو) اوپاچاهانو (راجاګانو) حکمرانی کولی او په خپلو منځوکښې به ئې دخپل خپل سلطنت دوسعت او پـراختیاد پار ه سره شخړی اوجنګړ نه کـ‌ول ، لـه دی بیان څخه مطلب دادی چې، که له افغانستان څخه هم څینی خلك داقتدار دبیرغ سره هندوستا ن ته را ننو تلی و وهغه بی آ ریائیانو نه بل څوك او یا په بل عبارت پردی خلك نه و بلکه هغوی دهند دآرئیانو ورېه‌و .

هند ته د شمال مغر ب له خوا څخه مغل چه پر د ی اوغیر آر یا خلك و او دجنوب مشرق له اوری څخه غیر ملکی انګر یزان د چل اومکر په ذریعه رانوتلی دی ، دغه دوا ړه یعنی مغل او انګر یز ان پر دی قام ونه دهندوستان داوسیدونکو او افغانانو دښمنان ثیږ شو یدی ، اوتل ئې دپښتنو سر ه خونړی جنګونه او مقابلی کړی اوتیری شو یلـ ی ، د دی ادعا دښکاره ثبوت د پاره مونږ په سرحد دانګریزانو ښکاره تیر ی او خونړ ی جنګو نه اود کـانګر‌س د آزادی په تحر یك کښې دپښتنو ګډون اوفدا کـا ری و ړ اند ی کو لا ی شو ، همدغه را زکو م انقلا ب چه په ۱۸۵۷ ع = ۱۲۷۳ هـ ق کـال کښې دانګر یزانو په خلاف جوړ شو ی و دهغه اربکی او محرکین هم پښتانه اوراجپوت و او همدغه راز دجهانسی درانیږ دلښکر و قوماندان غوث خان او په ډ هلی کښې دبهادرشاه ظفر د لښکر و قوماندان بخت خا ن پښتون و ،

# د رای پتهورا ډهلی

ډیلی له مسیح نه دری سوه کاله مخ کښې آر ومروپه کوم ځای کښې ودان و لیکن دغزنی د(سلطان محمود)دیر غلو نو په وخت کښې دډیلی په نامه د کوم یو ښار پته او نوم نښی مونده کیدلای لیکن دمحمود غزنوی نه ورو وسته کوم خلک چه د ده په ځای ناست و هغوی په دغه لړکښې کوم داسی ځای ته نه دی ورغلی چه هغه دی د ډیلی په نوم یاد شوی وی ، البیرونی دیرکاو نه په هندوستان کښې پاته شو او سنسکرت ئی هم واوست لیکن دی هم په خپلو لیکنو او د ( محمود غزنوی ) دیر غلو نو او حماو په بیان کښې د ډهلی نوم نه دی اخیستی ؛ د کوم ډهلی له پاره چه (شهاب الدین محمد غوری) او ( پرتهوی راج ) دتراوړی او پانی پت په میدانو نو کښې خونړی جنګونه کول هغه د رای پتهو را هغه ډهلی وچه د (تنورا ) خاندان راجا ( اننګ پال ) په ۱۰۵۲ ع - ٤٤٤ ه ق کال کښې ودان کړی و او دهغه دهلی نخښې او آثار ترننه ورځې پورې د (مالویه نګر) او (مهرولی) په شا اوخوا کښې لیدل کیږی ، مورخین وائی چه په ۱۱۵۱ ع - ٥٤٣ ق ه کال کښې د اجمیر د(چوهان) نومی قبیلې مشر چه ( وسال دیو )نومیده او (بسال دیو) هم یا دیده په دی ډیلی حمله وکړه ، د تنورانو او چوهانو دقبیلو په منځ کښې خونړی جنګونه وشول او وروسته ددی دوا ړوکورنیو په منځو کښې په دی خبره

روغه وشوه چه راجادی دچوهان دکورنۍ دنجلی سره نکاح وکړی اوله دغی نجلی څخه چه کوم هلک پیدا شی هم هغه دی د ډیلی جائز حکمران و منل شی ، په ډیلی کښې دفیروزشاه په کوتله کښې چه کوم څلی او منار ولاړ دی ددغه منار دیوی کتیبی څخه د چوهان قبیلـــی ددو ران پته لګیږی ، داکتیبه په ۱۱٦٤ ع ـ ٥٥٩ هق کال کښې لیکل شویده او په دی دهغه راجا (وسال دیو) د عروج ذکر لیکـــل شویدی چه د (پرتهوی راج) نیکه و .

څکه چه دډیلی د تنورا کورنۍ راجانارینه اولاد نه درلود نو هغه خپل لمسی پرتهوی راج په زوی ونیوه ، اتفاقاً د قنوج دراتهور نومی قبیلی راجا (جی چند) هم دتنورا کورنۍ مشرلمسی و او کله چه ډیلی د (تنورا) کورنۍ راجا مړ شو نو دا جمیر او ډیلی په دو اړ دو تختونو (پرتهوی راج) کښیناست پرتهوی راج اجمیر دا رالسلطنه وټاکـه او دډهلی حکومتئی خپل وروړ (کهاندی را و) ته وسپاره دقنوج درا تهور (راجاجی چند) له (پرتهوی را ج) سره ځکه دښمنی پیدا شوی وه چه دډیلی تنورا راجادی په زوی ونه نیو ، سره ددی چه دی هغه مشرلمسی و ، اودده تر مرګ وروسته دډیلی حکومت د پرتهوی

راج په برخه‌شو ، په‌دی دښمنۍ‌ کښی د پرتهوی راج دسویمبر (۱) په وخت کښی دسنجوګتا (۲) دتښتولو واقعی په‌اور باندی دتیلو اچولو کار وکړ او ددی دواړو راجاګانو دښمنی او مخالفت یوبل دریم طاقت یعنی پښتنو ته ددی خبری بلنه ورکړه چه هغوی هندوستان ته راشی او په هندوستان دخپل حکومت او اقتدار بیرغونه ورپوی .

**سلطان شهاب الدین محمد غوری دتراوړی په‌میدان کښی :**

کله چه سلطان محمد غوری له افغانستان نه هندوستان‌ته راغی

---

(۱) سویمبر - دلرغونو آریانانو د یوه دود نوم دی - کله چه به دلویو کورینو نجونی پیغلتوب ته ورسیدلې نو به دشاوخوا دلویو لویو کورنیو ځامی په یوه غونډه کښی راوبلل شول په دغه غونډه کښی به‌را بللو ځلمو خپل خپل کمالات او پهلوانی ښکاره کړل ولی دغونډی په‌پای کښی به پیغلی یوله دغو دا بلل شوو ځلمو څخه‌خپل میړه‌وټاکه او د هغه په غاړه کښی به ئې هغه مخصوص د ګلو امیل چه ددې‌دانتخاب نخښه وه وروا چاوه .

(۲) سنجوګیتایا سینوکتا دقنوج د راجا (جی چند) لوروه - ددې (سویمبر) ته پرتهوی راج نه وورابلل شوی او دسپکاوی له پاره ئې دخپو بت دراببللو ځلمو په پای کښی دروړل‌شوی‌ؤ سنجوګتا خپل انتخابی میل د پرتهوی راج د مجسمې په غاړه کښی واچاوه او د پلار دنظر یی عملی مخالفت ئې وکړ

په ۱۱۹۱ع = ۵۸۷ ق ه کال کښې د پرتهوی راج او سلطان شهاب الدین محمد غوری د لښکرو تر منځ د تراوړی په میدان کښې خونړی جنګ وشو، په دی جنګ کښې د پرتهوی راج تر قیادت لاندی د هندوستان سلو تنو راجا ګانو ګډون وکړ، هرکله چه پرتهوی راج دد وولکو سپرو او دریوزرو جنګی هاتیانو سره د جنګ ډګر ته ورګډشو نو سلطان شهاب الدین محمد غوری ته ئی ماتی ورکړه او د هندوستان نه بیرته افغانستان ته ولاړ، له دینه وروسته سلطان شهاب الدین محمد غوری بیا په دوهم وار د دوولکو سرتیرو ځانو سره په ډیره خاموشی د پرتهوی راج سره د جنګ دپاره را ووځید او هرکله چه دی د خپلو سرتیرو لښکرو سره پېښور ته را ووسیدنو یو سپین ږیری ورته داعرض وکړ چه:

د دې لښکر ځخه خو دیو ډیر لوی جنګ علامی ښکاره یږی او بیا د ځیو ملګرو ځخه د مقصد پټول څه معنی لری؟

سلطان محمد غوری ورته د یو ساړه اوسیلی نه وروسته په ځواب کښې وویل:

له کومی ورځی چه ما د پرتهوی راج په مقابل کښې ماتی کړیده نو تر ننه ورځی ما نه له ډیره خپګان ځخه خوب کړیدی او نه ما هغه په وینو ککړ کالی بدل کړیدی او نه می د هغو خلکو مخ ته کتلی دی چه هغوی په جنګ کښې ماتی کړی وه او زه ئی یوازی پریښی وم او س زه د ځپل پښتنی غیرت، د غوښتنی او تقا ضا سره سم غواړم چه د راجپوتو

هغه دخپلی ماتی بدل اوکسات وانخلم او خپل هغه کالی چه د ماتس دذلت په وینو رنګ اوکړ شوید ی دفتح او نصرت او بریالیتوب په او بو پاك او صاف کړم او یا دجنګ ډګر په خپلو وینو سوراو دشهادت جام نوش کړم .

هغه و چه په ۱۱۹۳ع - ۵۹۰ هق کال کښی دتراوړی په ډګر کښی دراجپوتو او پښتنو په منځ کښی دوهم جنګ ونښت په دغه جنګ کښی بری دپښتنو په برخه شو او راجپوتو ماتی وکړه ؛ په دی جنګ کښی (چروندا رای) او نور ډیر نامتو راجپوت جرنیلان ووژل شول ، پرتهوی راج ونیول شو او پر ډهلی د پښتنو بیرغ ورپیدل او په ۱۱۹۳ ع - ۵۹۰ هق کال په هندوستان کښی د پښتنو حکومت قایم شو . د ډهلی دغه لومړی پښتون پاچا دتذکره خوشتویسان د۲۸ مخ په شهادت یو ستر هنر مند او خوشنویس پاچا و په ژر لیکنه کښی ئی نوم درلو د او دعلماو او هنرمندانو قدر یی کاوه .

### پښتانه او استعماری مؤرخین :

کوم مورخین چه دمغلو او انګریزانو دلاس آله وهغوی تل دا کوښښ کړی دی چه د پښتنو کارنامی او په هندوستان کښی د پښتنو دحکومت قیام او تاسیس دخلکو په نظر کښی په بده بڼه ښکاره کړی او داځکه چه په دی کارپوری دهغوی سیاسی اغراض او مقاصد تړلی و

پښتنو دمغلو نه حکومت اخیستی و اومغلو ددغه عناد په اثر تل د اګو ښښ کاوه چه پښتانه بدنام کړی او په دی وسیله خپل مفاد تر لاسه کړی او دانګریزانو په دوره کښی غوره مالو او بی دیانته مورخینو د پښتنو په خلاف ځکه قلمونه پورته کړل چه مغل خو په سیاسی دول په ایشیا کښی دیر کمزوری شوی وو او دمغلو وروستی پاچا بهادر شاه ظفر دهغو آغاګانو یعنی انګریزانو په رنګون کښی نظر بند اومړ کړ . اوس په دغه وخت کښی ددی غدار و مورخینو بادارانو ته یوازی د افغانستان له خوا خطره موجوده وه او دا ځکه چه په دغه وخت کښی پښتانه په خپل وطن افغانستان کښی دسیاسی ژوند خاوندان و او انګریزانو سره داویره ملګری وه چه مبادا پښتانه پر هندوستان حمله وکړی او انګریزان دهندوستان څخه د باندی وشړ : نو د انګریزانو دعهد غدار و مورخینو داخطر په نظر کښی نیولی په تولو هر دول ممکنو وسا ئلو ئی دا کوښښ کړی دی چه پښتانه دخلکو په نظر کښی بدنام او بد معرفی کړی :

نن هم په هندوستان او پاکستان کښی دانګریز عهد غدار مورخین دپښتنو ترقی او پرمخ تګ ته نشی کتلی ، له دی کبله د وی دپښتونستان آزادی نه منی او دافغانستان او پاکستان په مسئله کښی داغداران دافغانستان په مخالفت کښی دیر بوخت لیدل کیږی او دا ځکه چه د وی سره دا ویره ملګری ده چه که چیرته پښتانه بیا دسیاست دګرته راګډ شي ،

نو په دغه صورت کښې به د پاکستان او هندوستان په منځ کښې هغه جګړې چه مغربي استعمار چيانو راپيدا کړې دي پښتانه فيصله کړي او په ايشيا کښې به بيا له سره دوروولۍ او مينې روح پيدا شي.

## د پښتنو په ډهلي

په ۱۱۹۳ ع =۵۹۰ هق کال کښې چه په ډهلي کښې د پښتنو حکومت قايم او جوړ شو نو محمد غوري د خپل د غه بري په ياد په مهرولي کښې قوت الاسلام نومي مسجد ودان کړ او دده سرتيرجرنيل قطب الدين دقطب مينار په ودانې پيل وکړ، چه د غه دواړه شيان نن هم قايم او موجود دي او تل تر تله به په هندوستان کښې د پښتنو دبرم نمايندګي کوي.

محمد غوري د ډهلي د نيولو نه وروسته خپل جرنيل قطب الدين دنائب الحکومه په حيث مقرر کړ او پخپله افغانستان ته ولاړ.

د ي غدار ومؤرخينو قطب الدين اودده په ځاى ناست نور خاکک په خپلو کتابو کښې دخاندان غلامان په نوم ياد کړي دي ليکن د دوى دغه خبره صحيح نه ده ځکه چه قطب الدين او دده په ځاى ناست تول پښتانه وو، قطب الدين په ۱۲۱۰ع=۶۰۷ هق کال په لاهور کښې په داسي حال کښې چه په سانګه ( پولو ) لوبه بوخت و مړ شو قطب الدين په انارکلي کښې دهسپتال رود نومي ځاى ترخنګه په يوه

تنگه کوڅه کښې ښنخ دی . بې ننګو او بې غیرتو مسلما نانو دغــه قبر په یوهندو خرڅ کړاو دغه هندو په دغه ځای کښې دکور په ودانولو پیل وکړ ، هرکله چه دغه حساس هندوته داخبره معلومه شوه چه دادهندوستان ډیر ننــګیالی پادشاه قبردی نوهغه د دغه قبر څخه خپل دیوال کوږ اوچپ کړاودغه قبرئی دديوارلانــدی نــه کــړ .

دقطب الدين نه وروسته د غوری خاندان (۹) پښتانه پاچهان تیر شویدی چه په دوی کښې یوه ملــکه رضیه بیګم وه ، دقطب مینار ددی‌کورنۍ ډیرمشهور یادګار دی ، ددی مشهور څلی په ودانولو قطب الدين پيل وکړاودغه ودانی دد ی زوم شمس الدين التمش پا ی ته ورسوله وروسته سلطان فیروزشاه تغلق اوسلطا ن بهلول لود ی دغــه څلی ترمیم کــړ .

سلطان شمس الدين التمش د ۱۲۱۱ ع =۶۰۸ ق هـ کــال څخه تر ۱۲۳۶ع =۶۳۳ ق هـ کال پوری حکومت وکړاووفا ت نه وروسته پــه قوت الاسلام نومی مسجد کښې ښخ کړ ی شو ، د سلطان شمس الـدين التمش په‌دوره کښې دحوض خاص اوحوض شمسی اونورو څخــه ګیرچاپیره لو ی لوی باغونه او دسيل اوساعت تیرۍ دپاره داسی ښــه او دتفریح ځایونه جوړکړه شول چه خلکو به‌ډهلی دطرب آباد پــه نامــه پــا داوه ؟

## د قطب مینار ددوهم پوړ کتیبه :

دقطب مینار ودانی سلطان شمس الدین التمش پای ته رسولی وه ، ددی مینار پهدوهم پوړ دالاندی لیکنی شویدی .

امر باتمام هذاه العمارت الملک المؤید من السماء شمس الحق والدین ایلتمش السلطان الناصر . . . . .

همدغه راز په بل ځای کښی لیکل شویدی :-

السلطان الاعظم ..... ابو المظفر .... ایلتمش سلطانی ......

## رضیه سلطانه

دغوری کورنۍ ددیری زړه وری او اولو العزمی میرمنی چهنوم ئی رضیه بیگم او د شمس الدین لوروه په ډهلی کښی خپل ورور رکن الدین له تخت نه کوزکړ او پخپله دډهلی پهتخت کښینا ستله اوله ۱۲۳٦ع=٦۳٤ هق کال څخه ئی تر ۱۲۳۹ع =٦۳۷ هق کال پوری پاچاهي وکړه ددی میرمنی قبر دډهلی دترکمان گیټ د سیتار ام بازار بلبلی نومی کوڅه کښی تراوسه موجود دی ، لهدی څخه څرگند یږی چه دپښتنو دهلی دننی شاهجهان آباد پوری خپور پروت واومغل پاچاشاهجهان چهپهکوم ځای کښی ډهلی ودان کړی دی دغه کوم نوی اقدام نهؤ بلکه پر دغه ځای له پخوا څخه دپښتنو ډهلی ودان واو دهغهډ هلی ډیر آثار ئی ددی موجودهډهلی پهډیرو ځایو کښی موندل کیږی ؛

میر من رضیه بیگم خپله سکه هم جاري کړی وه چه په دغه سکه دا عبارت لیکلی و:

السلطان الاعظم رضیة الدنیا والدین:

ملک اعزاز الدین بلبن له ۱۲٤۱ نه تر ۱۲٤٦ع کال پورې پاچاهی وکړه او علاوالدین مسعود شاه له تخت نه کوز کړ:

**سلطان ناصرالدین:**

د بیگم رضیه نه وروسته دغوري کورنۍ لوی پاچا سلطان ناصرالدین تیر شویدی چه د شمس الدین التمش زوی ؤ دا پاچا ډیر فقیر طبیعته او درویش صفت او دیندار پادشاه و او د ده وزیر غیاث الدین بلبن هم ډیر پوه او هوښیار شخص ؤ ناصرالدین به سر بیره د پاچاهی په کار و نورخپل کورد گذاری د پاره کار او مزدوری کوله قرآن شریف به ئې لیکه او خولی به ئې گنډلی وائي چه دا بادشاه ددومره رحم او مروت خاوند و چه د هغو اندازه کول ډیر گران کار دی، یوه ورځ ده ته یو سړی راغی او د هغه قرآن په کتلو ئې پیل وکړ چه ده لیکلی و، دغه شخص په یو ځای گوته کښینبوده له چه داځای غلط لیکل شویدی، سلطان ناصرالدین فوراً په هغه ځای نخښنه کښینبوده له او ورته ئې وویل چه داغلطی به سمه کړم، هرکله چه هغه شخص ولاړ نو ده هغه نخښنه ورانه کړه خلکو ور څخه پوښتنه وکړه چه دا څنگه قصه وه چه اول دې غلطی ورسره ومنله او بیا دې دغلطی د تصحیح وعده ورکړه او اوس دې یو ازې هغه نخښنه ورانه کړه او غلطی دې

پەخپل حال پریښوده سلطان ناصر الدین ورته پەځواب کښې وویل چه غلطي بیځي نه وه مادغه نخښنه او اقرار یوازی له دی کبله وکړ چه د هغه زړه مات او خپه نشي :

**بیګم سلیمه:**

ددی پاچادنیکمرغی کلی نوم سلیمه و ، دی میرمنی به دکورتو لی چاری پخپله کولی تر څو چه یوه ورځ دوه دی پخوا و په سلسله کښې ددی لاسونه وسول نو دی خپل خاوند یعنی سلطان ناصرالدین ته وویل چه «که نور څه نه کوی نو یوه مزدوره خو وساتهٔ ځکه چه هره ورځ می نغری ته کښینا ستل له لاسه نه کیږی »سلطان ناصرالدین ورته په جواب کښې وویل زما ګرانی بیګمی ، دا رښتیا خبره ده چه زه په ظاهر کښې پاچایم لیکن حقیقت داد ی چه زه یو ډیر غریب سړی یم او زه دسلطنت روپو ته ځکه ګوتی وروړلای نشم چه دار و بی یوازی د رعایاو د فلاح او بهبودی دپاره دی او باید په همدی چار و ولګیږی او پاته شوه ز ماخپله ګته نوهغه خوتاته معلومه ده چه په هغی کښې دمزدوری دساتلو ګنجایش او ځای نشته لکه څنګه چه زه خپل کار و نه پخپله کوم او خواری او مزدوری کوم ته هم باید خپل کار پخپله وکړی اوداځکه چه دغریبو خلکو کلی خپل کارونه پخپله کوی ، په دنیا کښې څو ورځی زیار او تکلیف وګاله تا ته به خدای د دغه زیار او تکلیف په بدل کښې بدل او اجر درکړی او په هغه ځای کښې به دی هوسا کړی چه هغه په تل تر تله زما او ستا او تو لو خلکو داستو ګنی ځای وی :

دى پاچاد جمنا پەغاړەپەکاو ګهړی نومی ځای کښی یوه سپینه ماڼی ودانه کړه.ده بەتل پەهغه ماڼی کښی چه(هزار ستون) نومیدله دربار کاوه

**غیاث الدین بلبن:**

دسلطان ناصر الدین نەور وسته دده پوه او لایق وزیر غیاث الدین بلبن دده پەځای کښیناست او له۱۲۶۵ع=٦٦٤ق، ه کال څخه ئی تر ۱۲۸۷ع= ٦٨٦ق، ه پورې پاچاهی وکړه ددی پاچاپەعصر او دوره کښی د ایشیا دپښخلسو ملکو نوشهزادګان دمغل چنګیز دظلم اوتیری څخه په تنګ شول او دهلی ته ئی پناه راوړه.دی خلکو تەبه دده لەخوا د وظیفی په ډول ډیری روپی ورکول کیدلی دی پاچاډیر لوی دربار درلود، اوځپل لښکر به ئی ډیر ښه او خوشحال سا ته څو څو واری ئی د مغلو حملی شاته وو هلی دی پاچا دښتی نظام الدین نومی ځای تر څنګ په «دورزغن» کلا کښی یو «سور محل» جوړکړی وچه خلکو به داځای دغیاث پور په نوم هم یاداوه.

**دادوژبی بانی :**

یوه خبره چەتر اوسه هیچا ددغی خبری د ښرګند والو جرئت نه دی کړی او داځکه چه هغه رښتیا خبره ده او رښتیا ویل دهر چا کار نه دی ، هغه رښتیا خبره دا ده چه دواړو ژبی پەخصوص کښی ده ددی ژ بی پەشا اوخوا کښی ټل خلکډیر وپا ګند پەډول داو یناکوی چەداژبه دمغلو ددوری او عصر ژبه ده ،حال داچەددی ژبی بانی امیر خسرو دی چه د پښتنو په عصر او دوره کښی وکه څههم امیر خسرو په هند وستان کښی پیداشوی ولیکن

په حقیقت کښې دده نیکه دافغانستان د بلخ د مربوطاتو څخه دیوکلي و. لنډه دا چه دار دوژبی با نی او په هندوستان کښې د هندوستان دمختلفو قامونو په منځ کښې د لساني اوکلچري یو والي او اتحاد مئوسس امیرخسرو دهمدی غیاث الدین بلبن ددربارشاعرو چه اصلا افغان واونیکه ئي دبلخ نه هندوستان ته راغلي و.

**افغان سلاطین به هندخدائی میکنند:**

په تاریخ فیروزشاهي کښې لیکلي دي چه هرکله د هلاکوخان ایلچي ته په دربار کښې د ملاقات موقع ورکړ شوه نود کوشک سبز څخه دکلوګوري پوري دسړك په دواړو اړخونو لښکري ولاړي وي او هرکله چه د غیاث الدین بلبن وزیر دده مخې ته راووت نو په دغه وخت کښې له دوسره پنځوس زره سپاره، دوه لکه پلي لښکر دوه زره جنګي پیلان هم راووتل په دغه وخت کښې د شاهي باجه خانو او شاهي سلامي اولغار واو دولونو او باجو او سرناګانو او دپیلانو زرق او برق او دګونګروګانو شرنګیو او دآسونو د سوو آواز واود آسونو شنهار او دوسلو پرکهار اوشرقهار په فضا کښې عجیبه انګاز خپره کړی وه، لنډه دا چه د غې دبدبې او هنګامی د هلاکوخان ایلچي ته دا خبره څرګنده کړه چه «افغان سلاطین به هندبادشاهي نمی کنند خدائی میکنند» هرکله چه دهلاکوخان ایلچي په دربار کښې دشهزادګانو امراو او مها راجاګانو او راجاګانو هجوم ولید نو حیران پاته شو.

سلطاً ن غیاث الدین بلبن ۲۳ کاله پاچهی وکړه او په ۱۱۸۷ ع =٦٨٦ ق ه
کال وفات شو، ددی لوی او عظیم الشان با د شاه قبر دډهلی په مهرولی
نومی ځای کښی دجمالی مقبری تر څنگه دی :

**کیخسرو کیقباد :**

۱۲۸۷=٦٨٦ ه ق کــال نه تر ۱۳۹۰ ع =٦٨٩ ه ق کــال پــوری
پا دشا هی وکړ ه او ده نه و روسته دغوری پښتنو دکورنی پاچهی پا ی ته
ورسیدله او دخلجی پښتنودکو رنی بیر غ په رپید و پیل وکړ :



# دپښتنو دخلجي کورنۍ دوره

دغوري پښتنو د دورې د پای ته رسید لو سره سم دخلجي پښتنو دوره شروع شوه ددې دورې دلومړي پادشاه نوم ښایسته خان ؤ د اشخص دخپل عمر په (۷۰) کال پاچا او د جلال الدین فیروز شاه په نوم مشهور شو دی په ۱۲۹۰ع=۶۸۹ه ق کال په تخت کښیناست او تر ۱۲۹۵ع=۶۹۴ه ق کال پورې ئې پاچهي وکړه، دده د حکومت په دوره کښې د ړې زره مغل مسلمانان شول، ده دغه مغل په عسکر کښې شامل او په (مغل پوره) نومي ځای کښې ئې میشت او ودان کړل، د ده د حکومت په دوره کښې دده نا متو وراره علاوالدین خلجي د کن ونیو:

د خلجي کورنۍ دوهم پیاوړی پاچا سلطان علاوالدین خلجي دی چې په (سکندر ثاني) ئې شهرت درلود، دی پاچا له ۱۲۹۵ع=۶۹۴ه ق کال څخه تر ۱۳۱۶ع=۷۱۶ه ق کال پورې پاچهي وکړه. ده په زرگونو هغه مغل چه دده په حکومت ئې حملې کړې وې له تورې تیر کړل:

ده د «سیرۍ» په نوم یو نوی ښار ودان کړ چه د دغه ښار د ودانو او نړیدلو کنډرونو او کنډوالو آثار نن هم دمهرولي په شااو خوا کښې لیدل کیږي:

دې پاچا دډهلي د زړې کلا او قصر هزار ستون ترمیم هم وکړ او د مسجد قوت الاسلام علائي دروازه ئې هم جوړه کړه.

د «علائی» مینار په و دانو لوئی هم پیل و کړ. ده غوښتله دا مینار تر قطب مینار هم جګ کړي مګر عمر وفا ور سره ونه کړه او نیمکاره پاته شو دامینار ترننه ورځې پورې د قطب مینار په احاطه کښې دننه موجود دی .

دې پاچا دقوت الاسلام نومی مسجد په لمر پریواته خوا کښې خپل محل تیار کړ اودغه مسجد ئې ارت او پراخ کړ - حوض علائي یا حوض خاص هم ددې پاچا یادګار دی .

دنظام الدین اولیا د درګاه اکثر ځایونه دهم ددې پاچا په وخت کښې ودان شویدی ، ددې نامتو پاچا په عهد او دوره کښې دده جرنیل «کافور» په راس کماری دهندوستان دپښتنو بیرغ ودراوه او د پل آدم او مشیورم په څنګ کښې ئې دیادګار په توګه یومسجد جوړ کړ ، مغلی او انګریزی مؤرخینو چه څومره داپاچابدنام کړیدی دومره ئې بل پښتون پاچا نه دی بدنام کړی ، ددې کارلوی اومهم سبب داؤ چه ددې پاچا په عصر کښې دمتحده هندوستانی قومیت بنسټ کښېښودل شوی ؤ اوده پیر مغل له توری تیر کړی وو .

### امیرخسرو او سلطان علاؤالدین خلجی :

داردو ژبې دبانی اود فارسی نامتو شاعر حضرت امیرخسرو سره ددې بادشاه تعلقات ډیر دوستانه ؤ ، امیرخسرو دالاندې غزل د سلطان په خصوص کښې ویلې ده .

بازم رخ زیبای کسی درنظر آمد — عشقی بدل افتادو هوائی بسرآمد
زین پس نخورم هیچ غمی خاصه که از رخ — برشاه جهان مژدهٔ فتح و ظفرآمد
آن شاه علاؤالدین اسکندر ثانی — کز لشکر او زلزله در بحر و برآمد
سلطان جهانگیر محمد شه اعظم — کز داد و دهش همچو علی وعمرآمد
از زلزلهٔ جیش تو دهلی زحد خویش — جنبید و زمین بوسه زناز پیشتر آمد

که څه هم علاوالدین درا جیو تودر اجاګا نو سره سیاسی جنګونه وکړل لیکن درا جپو تو سره یې د یر ښه تعلقات لرل او نوری قصې بیخي لغوه او بې معنی دی او د نویو تاریخي تحقیقاتو په رڼا کښې غلطي او لغوه ثابتې شوې دي.

## قطب الدین مبارك خلجي :

د خلجیا نو په کورنۍ کښې سر بیره په علاوالدین نورهم څو پاچهان تیر شوي دي، ددې کورنۍ ډیر نامتو پاچا قطب الدین مبارك خلجي دیو ډیر زیات حسرتنا ك او د عبرت نه ډك انجام سره مخامخ شوی دی، داباد شاه په خپلو وطن وا لو ورو نو یعنی هند او نو ډیر مهربا نه ؤ او په دوی به ئې اعتماد کا وه، ددې کار په اثر د ښمنا نو په ده پسې دشرا فت نه ډیر لرې بد پروپا ګنډ ونه هم کړیدی لیکن حقیقت دادی چه دغه پروپاګنډ بیخي غلط او د دی په عکس دی، ده خپلو وطنوا لو ورو نو هندوانو سره ډیره مینه لرله او د ائي غوښتل چه دوی د سلطنت په چارو کښې د نورو

سره بر ابـره او مسا وی برخه ولری ، لکه چه‌ده په‌خپل عسکـر کښی هند وا ن هم‌شامل کړ ی ؤا و په‌در با ر کښی هم هندوان د ډیر رسوخ خاوندا ن ؤ، لیکن افسوس چه‌دغه پادشاه دیـو نوی مسلما ن شوی هندو اودهغه‌دنور و هند وانو ملـګر و له‌لاسه په خپل محـل کښی و وژلی شو ، دد ی نوی مسلمان شوی هندو نوم (خسر ؤ)و ، دا سړ ی دقطب الدین خلجی ز یا ت معتمد ؤدی سړی یوه ورځ پاچا ته دا عرض وکړ چه زما ځینی خپلو ان غواړی چه‌مسلما نان شی ، دپښتنو دحکومت په دوره کښی د ا دود ؤ چه‌خوك به‌نوی مسلمان شو هغه به پاچا ته سلام کاوه او د پاچا له‌خوا به ورته انعام او اکـرام ا وخلعت اود سـر وزرو کـنـګر و رکیدل ، دغه‌خسرو نوی‌مسلمان شوی هندو هم په دی بانه او پلمه نور هند وا ن دځان سره ملګـر ی کـړل اوپه‌شا هی محل ئی ورننه ا یستل اودغه پادشاه ئی شهید کړ .



# د پښتنو د تغلق کورنۍ

د خلجیانو له زوال نه وروسته د پښتنو د تغلق کورنۍ ته اقتدار په لاس ورغی په دې کورنۍ کښې اته پاچهان تیر شوي دي چه په دغو پاچهانو کښې محمد تغلق او فیروز شاه تغلق ډیر نامتو پاچهان تیر شوي دي ، د دې کورنۍ لومړنۍ پاچا غیاث الدین تغلق ؤ . دی پادشا په خپل نوم یوه کلا (قلعهٔ تغلق) او یو ښار د(تغلق آباد) په نوم ودان کړی دی ، دا غیاث الدین تغلق په ۱۳۲۵ ع =۷۲۵ هـ ق کال کښې وفات شوی او په تغلق آباد نومي ښار کښې دیو ډنډ خوا ته په هغه ځای کښې چه ده یوه گنبده ودانه کړې وه ښخ شوی دی .

**محمد تغلق :**

محمد تغلق ، غیاث الدین د تغلق زوی چه ( شاهي خطاب ئې الغ خان ؤ) په تخت کښیناست نو د محمد تغلق په نوم ئې شهرت ومو ند دی په علم مین او د و مره تینگي ارادې خاوند ؤ چه دښمنانو او حاسدانو ئې په لیونې مشهور کړی ؤ د ۱۹۵۸ ع کال د مارچ په آجکل مجله کښې لیکلي دي :

( د محمد تغلق نوم د ادبي خدمتو د فهرست په سر کښې باید ولیکل شي د وبه د عالمانو او شاعرانو زیاته قدر داني کوله ـ دده په دربار کښې

عبید (بدر) غونډی شاعرانو، ضیاء الدین برنی غونډی مورخینو او
مولانا نصیر الدین غونډی ادیبانو لاره درلوده.

پخپله محمد تغلق هم په فلسفه، ریاضی، نجوم، منطق او علم
طب کښی د زیاتی پوهی خښتن و. د ده په پاچهۍ کښی په زرو تعلیمی
اداری قایمی کړی شوی وی د ده په وخت کښی یوازی په دهلی کښی زر
مدرسی وی چه هر یوی ځانته کتابخانی درلودی د محمد تغلق خپله
کتابخانه بیله وه چه په هغه کښی خورا زیات غوره کتابونه راغونډ
کړی شوی و) ده د خپل سلطنت لمن تر ډیرو لری
ځایو ارته کړه، ده د سلطان علاوالدین خلجی په (سیری) نوم ښار
او د قلعهٔ تغلق په فصیلونو او ښاوخوا او ددی کلا په دننه ودانیو (جهان
پناه) نوم کښېښود، ده دربارته د مصر نه د عباسی خلفاؤ یوسفیر د خلافت
سند راوړ او له دغی ورځی څخه په خطبه کښی د پاچا د نوم په اوستلو پیل وشو
ده په دربار کښی به چه څوك په ملاقات مشرف شو نو د بسم الله او هداك الله
الفاظ به ئې بیا بیا تکرارول، دی ډیر سخی پاچا او د ده دربار
د ډیر شان او شوکت دربار و. ده د گنگا نومی سیند پر غاړه (گرگ دواره) نومی یو
ځای هم ودان کړی و، ده د مسو او ژیړو سکی هم جاری کړی او ده او مری نوټونه
جاری کړیدی، دغه نوټونه به د خرمنی څاود سرو زرو میخونه به وربا ندی
ټك وهل شوی و، د انگریزانو د عصر کاغذی نوټونو د غو نوټونو په
مخ کښی هیڅ حقیقت نه درلود.




**فیروز شاه تغلق :**

هرکله چه محمد تغلق کوم زوی نه درلو د نودده ترمرگ وروسته دده وراره فیروز شاه دده په ځای په تخت کښیناست ، چه د ده د ژوندانه حالات په تاریخ فیروزشاهی کښی په تفصیل لیکلی دی ،

دآجکل مجلې په ٤٧ مخ کښی لیکلی دی :

(فیروز شاه دادب او علم لورته پخپله زیاته توجه لرله ، ډیر کتابونه ئی تالیف کړی دی چه یو ئی (فتوحات فیروزشاه) نومیږی دده په دربار یا نوکښی ضیاء برنی او شمس سراج غوندی مورخین او تاتارخان غوندی مفسرین موجود وو - فیروزشاه خپله هم یوه داسی لویه کتابخانه لرله چه ۱۳۰۰ یواځی دسنسکریت کتابونه پکښی ؤ ، یوه دارا الترجمه ئی هم جوړه کړی وه چه ځو را ډیر سنسکرتی کتابونه ئی په پارسو اړولی دی . ده د مځکو د پښه کولو دپاره سربیره د جمنا د لمر پر یواته خوا په نهرونو ډیر نور نهرونه هم ایستلی وو . دی باچاپنځه سوه بندو نه دبارانله پاره او څلویښت مسجدونه ، دیرش عالی مکتبونه ، سل سرایونه ، دیرش حوضونه او پنځلس پلونه جوړ را وو دان کړل :

دچو برجی مسجد - دترکمان گیټ لوی مسجد - دکوټلې مسجد ، دکالی سرای مسجد - دبیگم پوری مسجد او ما لویه نگر په څنگ کښی

دکهرکی مسجد ، داتول مسجد و نه دهمدې پا دشاه په عصر کښې جوړ او و دان شو یدی ، دفیر و ز شا کو ټله دهمدی پادشاه کلاو ه چه ا وس دهغې کلاځینی و ر انی کنډ و الی باقی پاته دی ، داشو ک لا ت هم دې پادشاه په همدی کلاکښې نجتی ؤ ، دی پاچا څلو یښت کا له حکو مت وکړ او په ۱۳۸۸ ع ۷۹۰ ه ق کـال کښې مړ شو ا و په حرض علائی یاحو ض خاص کښې ښخ شو ددې پادشاه د و فات تا ریخ دادی : ( و فات فیر و ز شاه ) ۷۹۰ هجری .



# دافغانستان سید خاندان حکومت

دافغانانو سیدانو حکومت په ډهلی کښی له ۱۴۱۴ ع = ۸۱۷ هـ ق کال نه تر ۱۴۵۱ = ۸۵۵ هـ ق کال پوری حکومت وکړ ددی حکومت بانی او مؤسس خضرخان و، دی سړی دخان دپاره کرم شاهی خطاب نه و غوره کړی او تش د «نائب تیمور لنګ» په نامه بیادیده ددی خاندان دوهم پاچا سید معزالدین مبارک شاه په ۱۴۳۱ ع = ۸۳۵ هـ ق کال په تخت کښیناست او د مبارک آباد په نوم ئې یو نوی ښار ودان کړ او کوټله مبارک نومی ښار هم ددی شهید بادشاه یادګار دی وزیر سرور الملک دی په داسی حالت کښی په چاړو واژه چه دانیک، بخت او دیندار پاچا دجمعی دلمانځه دپاره په تیاری بوخت و، دی ډیر نیک، سخی او پرهیزګار بادشاه ؤ او دده دعهد تاریخ د «تاریخ مبارک شاهی» په نامه او س هم شته دپښتنو دسید خاندان دریم بادشاه محمدشاه ؤ، دی دمبارک شاه لمسی و، ده د خپل نیکه مبارک شاه بدل دسردار سرور الملک څخه په دی ډول واخیست چه ده وزیر سرور الملک په چاړو واژه؛ دده په عصر کښی بهلول لودی دسلطنت دعوی وکړه - د سید خاندان نخلورم پادشاه علاوالدین شاه و، ده په ۱۴۵۱ ع ۸۵۵ هـ ق کال کښی خپل حکومت بهلول لودی ته وسپاره او په خپله ئې وظیفه واخیستله او په بدایون کښی میشت شو.

# دپښتو دلودي کورنۍ وصدر

دلودي کورنۍ باني دملک کالاخان زوی بهلول خان ؤ چې په ۱٤٥۱ع ۸۵۵ هق کښې دډهلي په تخت کښېناست ، دی ډېر نیک او متقي او پرهیزګار او عالم او په علم مین او علم پالونکی بادشاه ؤ او (۳۸) کاله ئې حکومت وکړ او په ۱٤۸۸ع -۸۹٤ هق کښې وفات او دسید نصیر الدین شاه محمود روشن چراغ د ډهلي په څنګ کښې ښخ کړای شو ، دده دا ډېره شاندار مقبره دده نامتو زوی سکندر لودي ودانه کړې ده چه اوس بیخي ورانه شوې او دکنډوالي په شان ګرځیدلي ده ، دبهلول لودي په خصوص کښې دپښتو ادب په تاریخ کښې صدیق الله رښتین دپټې خزانې په حواله لیکلي دي چه دی پخپله هم دپښتو ژبې پیاوړی شاعر ؤ او خلیل نیازي دده دربار پښتو شاعر ؤ یو وارد برسات په وخت کښې په داسې حال کښې چه دآسمان مخ وریځو پټ کړی ؤ خلیل نیازي عرض وکړ :

خړې وریځې ژاړي له پاسه * کوځله زغ کابیلتون له لاسه
هغه لونې په خول ستا * دا مرحبا کا زمو نز موا سه

دده په جواب کښې سلطان بهلول لودي په پښتو کښې فی البدیهه داشعر ونه ویل :

ملک به زرغون کړم په ورکړه راسه * ګوره وریځې د دادله پاسه
خول مې دعدل ددرو رون دي * جهان به زیب مومي زما له لاسه

دپور ته‌شعرونو څخه داثابتېږي چه دسلطان بهلول لودي په‌عصر کښې پښتو ژبې په‌هندوستان کښې قدر او مقام درلود.

**سکندر لودي :**

دبهلول لودي نه وروسته دده زوی نظام خان چه د سکندر لودي خطاب ئې ځانته غوره کړی ؤ په ۱۴۸۸ ع ـ ۸۹٤ کال کښې په‌تخت کښېناست ده‌چندېری ونیوله او په متهرا کښې ئې مسجد ونه او بازارونه ودان کړل دده په‌دربار کښې به‌هم لوی لوی شاعران او مورخان حاضر ؤ چه په‌هغو کښې عیسی‌خان او شیخ عباس خان په‌مخصوص ډول دذکر وړدی: دی بادشاه دعمارتو نو دودانولو سره ډیر ه‌مینه‌لرله.

دې پاچا په ۱۵۰۵ ع ـ کال کښې د خپل کونسل دفیصلې سره سم اګره خپله‌دارالخلافه‌وټاکله‌او داځکه‌چه‌ددهلي په‌نسبت دا ګری او به اوهوا ډېره‌ښه وه ، داګری په‌خوا کښې سکندره نومی ځای (چه‌اکبر مغل هم په دغه ځای کښې ښخ دی) ددی بادشاه دیادګار ونو څخه دی، دا ګری قلا هم همدې پادشاه ودانه کړې‌ده چه‌دغه کلامغلو تر میم کړه او دپښتنو دد ورې نه وروسته ئې دغه کلا په‌خپل نوم کړه ، ابو المظفر سکندر لودی ۲۸ کاله پاچهي‌وکړه اوپه ۱۵۱۷ ع ـ ۹۲۳ ق ه کال په‌اګره کښې مړشو ؛ دده مړی دده زوی سلطان محمدابراهیم لودی ډهلی ته‌راوړ او په (خیرپور) نومی ځای کښې ئې ښخ کړ، دغه ځای چه سرېیره پردی چه دسید خاندان د بادشاهانو مقبره ده دلودی خاندان نورې

مقبر ی هم پد غه ځای کښی دی چه نن دغه ځای د ( لو دی گارډ ن )
په‌نوم یادیږ ی‌او ذر و تــنډر و ډپه‌خوا یعنی په‌هغه ځا ی کښی‌چه‌دافغا نستان
سفارت‌خا نه‌د ه پر وت دی .

**سلطان‌محمدابراهیم‌لودی:**

دابو المظفر سکندر لو دی نه‌ور وسته‌دده ز وی سلطان‌محمدابراهیم‌او دی‌په
تخت‌کښیناست ، دی‌ډیر نامتو پادشاه تیر شو یدی «د ی په‌خلکو کښی دشهید
پا چا په‌نوم‌هم یادیږ ی»ده به دجنگ‌په میدان‌کښی پخپله‌دخپلو لښکرو
قو ماندانی‌کو له ، او د جنګ په‌ډگر کښی په‌داسی حا ل کښی چه په خپله
ئې د مغلو سر ه دپانی پت په میدان کښی مقابله کو له‌شهیدشو چه نن هم
دده‌قبر دپانی پت په‌ور انو کنډر ونو کښی پر وت دی . دپښتو په‌دې‌شعر کښی :

کډبابر وی بیاپه قهر لو دی پښتو ن ته
خدای به‌بیاشیر شاه‌پیداکړ ی همایو ن‌ته

همدې لو دی پښتون ته اشاره د ه :



## دسوري پښتنو د اقتدار دوره :

دلودي خاندان د دوري د خاتمې نه وروسته د څه موده د پاره مغلو ته اقتدار په لاس ورغی لیکن پښتنو بیرته د فرید خان (چه په شیرخان سوري نوم ئې شهرت درلود) د مشرتوب لاندې د مغلو سره په جنګ پیل وکړ او مغل ئې له هندوستان څخه وایستل او بېرته ئې په هندوستان د پښتنو بیرغ پورته کړ، د همایون د شړلو نه وروسته شیرشاه سوري د سوري کورنۍ د حکومت بنسټ کښېښود، د اپا چا په ۱۵۴۰ع ۹۴۷ ق هـ کښې په تخت کښېناست دې سرتیر او ننګیالي پاد شاه په دې عربي مقوله (الحرب خدعة یعنې جنګ د چالونو نوم دی) ډیر عمل کاوه، د دې مفکورې په اساس به ده په جنګ کښې د هر ډول چالونو څخه کار اخیست په یو جنګ کښې چه مغل همایون ډیره بد رنګه ماتې وکړه او ښځه ئې په جنګ کښې ونیوله شوه او شیرشاه سوري ته وړاندې کړه شوه نو هغه خپل جرنیلان په دې کار ډیر ملامت کړل او هغې ته ئې خپله خور وویله او په ډیر ښه شان او پوره حفاظت ئې همایون ته ور سوله. همدې پاچا «پرانه قلعه» نومی ځای یعنې زړه کلا پوره او تکمیل کړه او په هغې کښې ئې ډیر شاندار عمارتونه ودان کړل.

په کوم ځای کښې چه نوی ډهلي ودان دی، هلته ئې د شیرګډه په نامه یوه کلا او یو ښار هم ودان کړ چه آثار ئې د (شیر شامس) په څنګ کښې د یو جګ فصیل او شاندارې دروازې په صورت کښې موندل کیږي.

دمالیې او دمځکو دتنظیم قانون دهمدې پاچا په عصر کښې جوړ کړ سو او د بنګال نه تر پیښور پورې لوی پاچاهی سړک همدې پاچا تیر کړ یدی چه (شیرشاهی پاچاهی لاره) یادیدله. ددې سړک د واړو خواؤ ته میوه داری ونی اینښوول شوی وې او په هر پړاو کښې د مسافرو د پاره سراوونه ودان شوی وه چه په دغو سرایو کښې به مسافرو ته د پاچاله خوا وړیا خواړه ورکول کیدل، که شیرشاه سوري ته دمتحده هندوستانی قومیت لوی هیرو وویلشی نو هیڅ مبالغه به نه وی.

## داتحادروح پالونکې منظره:

یو وار اتفاقاً هولی او اختر دواړه یو ځای راغلل په دغه وخت کښې شیرشاه سوری دا اعلان وکړ چه په پاچاهی دربار کښې دی دادواړه اختر ونه یو ځای و شی ددغه وخت متعصبو مولویانو او پنډتانو ددغه کار سخت مخالفت وکړ ملاناصر په دربار کښې په جګ آواز و ویل چه په شریعت کښې د دې ته کوم جواز نشته؛ شیرشاه ورته په جواب کښې و ویل چه زه د شریعت په ترمیم او تنسیخ کښې حق نه لرم لیکن زما دا فیصله ده چه هولی او اختر ونه دی دواړه یو ځای وشی او هر کله چه دا دواړه زموږ دیو والی یو اځینی تقریب دی نو باید دادواړه یو ځای وشی، ملا ورته و ویل چه زه به په دې کښې ګډون ونه کړم، شیرشاه ورته و ویل چه زه تا نه مجبوروم دا ستا خپله خوښه ده لیکن زه په دې خوشحالیږم چه ته په دې کښې ګډون وکړې.

هنارسی پنډت دیاشنکر به یو عرضداشت کښې و ویل چه هولی او اختر به یو

رخصت کښې دواړه سره یوځای نشي کولای او داځکه چه په دیکښې د مذهب سپکوالی او توهین دی.

شیرشاه سوري ورته په جواب کښې وویل چه «زمانیت صاف دی زه دچا ددین او مذهب توهین او سپکاوی نه کوم زما خدای به ماسره انصاف وکړي».

دپورته سوال او جواب څخه داخبره ثابتیږي چه په هندوستان کښې د مینی او محبت: ژوندانه بنسټ پښتنو ایښی دلی ؤ او لکه څنګه چه نن زموږ ځینی وطندا ران ورونه اتحاد او یووالی نه خوښوي همدغه راز دپښتنو په عصر او زمانه کښې هم دملاناصر او پنډت دیاشنکر په شکل ځینی متعصبین موجود ؤ.

په هر حال شیرشاه اعظم هولی او اختر دواړه یوځای وکړل ،
ددې تفصیل دشیرشاه سوانح نگار ناظم خان داسې بیان کړیدی:

«داګرې په لوی میدان کښې داختر دلمانځه او دهولۍ د مذهبی مراسمو دادا او په ځای کولو نه وروسته خاک سره راجمع شول او یوبل ته ئې د روغ بړ نه وروسته سره مبارکي ورکړې دحکومت له خوا د ژیړو او چینیو په ښکلو او لو یو لو ښو کښې ډیر خوا ږه او خوږ ند و رشربتونه تیار او جوړ کړای شول او دپستې او بادامو شیرې پکښې وا چول شو لې، دچاچه اختر ؤ هغوی د هولۍ خلکو ته شربت ورکړ او دهغوی خلکو هم دچا چه هولی وه هغوی په اختر کو و ښکلو شربتونه وڅکول هرکله چه شیرشاه اعظم په سپین آس سپور راغی

نوخلکو په ډیره مینه په جګ آوزدده هرکلی او استقبال وکړ
هرکله چه شیرشاه سوری دا تاکید کړی ؤ چه زما دسپرلۍ سره به
منصبدا ران بیخی نه وی نو له دې کبله دی یوازی دغه میدان ته راغی
او دده په راتګ ټولو دا خبره محسوسه کړه چه :

« دپاك خدای یو منتخب بنده له اسمان څخه مځکې ته را کښته شوی دی »

دده دسپرلۍ د آس په شا یوازی دوه ځادرونه غوړیدلی ؤ چه دیو رنګ
سپین او دبل رنګ زعفرانی ؤ دا په حقیقت کښی د «هولی» او اختر
علامې وې ، دې حسن اتفاق ته باید څیر شو چه نن هم د آزاد
هندوستان بیرغ درې یعنی شین ، زعفرانی ، اوسپین رنګ لری او
دشیر شاه آس هم سپین ؤ او دهغه پرشاه چه کوم دوه ځادرونه
غوړیدلی ؤ یو شین او بل زعفرانی ؤ.

دشیرشاه سوری څخه دساده ګۍ او متانت مجسمه جوړه شوې وه
دټولو لومړی دښار پنډتانو او برهمنانو او بیا علما وو او صوفیانو او
ددربار نورو خلکو دده هر کلی او استقبال وکړ دشیرشاه په یو لاس کښی
دسروزرو یوه اوږده عطردانۍ وه او په بل لاس کښی ئې دعطرو شیندلو
یوه آله وه چه په خلکو به ئې عطر شیندل دا ځکه چه هندوان په هولۍ
کښی یو پربل رنګونه پاشی او جامې سره ورانوی عامو خلکو پاچاته
دمیلمستیا په توګه راز راز خوازه او میوې وړاندې کړې او بادشاه دوی
ته یوه درنه میلمستیا ورکړه او ترڅو چه شیر شاه په دغه میدان کښې ؤ

خلک په ډیره خوشحالۍ ددغې شاهي مېلمستیا په خوړو او بوخت وو .

تاسې دا نننی مهذب دور او عصر د پښتون شیر شاه دعصر سره مقابله او مقایسه کړی او دخپل زړه نه پوښتنه وکړی چه د آزاد او بې طرفه هندوستان دقولونه لومړی باني او داعي څوك و ؟

**پښتنو ته دشیر شاه سوری تلقین :**

لکه څنګه چه شیر شاه سوري دا کوښښ کاوه چه دهند دقولو کامونو څخه دهندوستان یو متحده قومیت جوړ کړی همدغه راز ئې پښتنو ته هم تل ددې خبری تلقین کاوه چه قول سره یوشي او قبایلیت یه افغانیت کښې ورك کړی لکه چه علامه اقبال د شیر شاه دغه نکته په دې ډول نظم کړې ده :

یه نکته خوب کها شیر شاه سوری نی
که امتیاز قبائل تمام تر خوار ی
عزیز هی نام وزیری و محسود
ابهی یه خلعت افغانیت سی هین عاری
هزار پاره هی کهسار کی مسلمانی
که هر قبیله هی اپنی بتون کا زناری
وهی حرم هی وهی اعتبار لات و منات
خدا نصیب کری تجهکو ضربت کاری

شیرشاه اعظم په ۱٥٤٥ ع= ۹٥۲ هـ ق کال کښې کالنجر ښار کلابند کړی ؤ په دغه وخت کښې په بارودو یعنې دتوپک په دا رواورو لګېد اودې کارپه اثرهغه وفات شو ، وائي چه ترهغه وخته پورې دده ساونه وتله ترڅو چه ده ددغې کلا دفتح خبر په خپلو غوږونو وانه ورېد، دده مړی دده زوی سلیم شاه یا اسلام شاه عادل سهسر ام (بهار) ته یوړ اوپه دغه ځای کښې ښخ کړ ای شو په سهسرام کښې دشیرشاه ډېره عظیم الشانه مقبره ده .

## سلیم شاه یا اسلام شاه عادل

دشیرشاه سوری د وفات نه وروسته دده دجرنیل نوا ب عیسی خان سوری د کوښښونو په اثر دده زوی اسلام شاه یاسلیم شاه عادل سوری په تخت کښېناست دی پادشاه د ۱٥٤٥ ع کال څخه تر ۱٥٥۳ ع کال پورې حکومت وکړ .

دغه کلا چه نن د لال قلعه په نوم یادیږی ددې بنسټ او اساس هم همدې پادشاه ایښود لی ؤ، ددې کلاکومه برخه چه ودانه شوې وه هغه په سلیم ګـډه نوم یادید له ، شاهجهان دسلیم شاهی نقشې په اسا س لال قلعه جوړه او ودانه کـړ ېده مغلو دهغې دښمنۍ په اسا س چه دپښتنو سره ئې لرله سلیم ګډه نوم په (نورګډه) بدل کړ سلیم شاه هم دخپل پلار غوندې ډېر سرتیر او دپوره حوصلې خاوندو ، ده ډهلی او آګره

دواړه پرېښودل او ګو الیارئې خپله دارالخلافه وټاکــله، ده نه وروسته چه نور کوچنی پادشاهان تېر شویدی دهغو نومونه دادی :

فیروز شاه ، محمد ابراهیم ،سـکندر شاه او نور .



## په ډيلي کښې دغوري خاندان پښتانه پاد شاهان:

۱ـ نوم ـ شهاب الدين محمدغوري ـ شهرت محمدغوري ـ تخت ته دختلو کال ۱۱۹۳ = ۵۹۰ هـ ق ــ دمرګ ډول د يو ګهګـر دلاسه دمـرګ کال ۱۲۰۶ ع =۶۰۲ هـ ق.

**کيفيت :**

دي پاچا په ۱۱۹۳ ع ــ ۵۹۰هـ ق کال کښې د هندوستان لـوی راجپوت راجا پرتهوی راج ته دتراوړی په ميدان کښې ماتی ور کړه او په ډهلی ئې د اقتدار بيرغ ودرا وه دپرتهوی راج زوی ئې د ډهلی په تخت په خپل حال پريښود او خپل جرنيل قطب الدين ئې دهند وستان ګـورنر و ټاکه او قوت الاسلام نومـی مسجد هم دی پاچا ودان کړيدی.

۲ــنوم قطب الدين شهرت ...ـتخت ته دختلو کال ۱۲۰۶ع =۶۰۲هـ ق ـ دمرګ ډول په لاهورکښی دآس نه پر يوت ـدمرګ کال ۱۲۱۰ع =۶۰۷هـ ق

**کيفيت :**

قطب الدين دمحمد غوری نامتو جرنيل ؤ دقطب مينار په ودانولو دي جرنيل پاچا پيل کړی ؤ .

۳ـ نوم آرام شاه ــ شهرت ... ــ تـخت ته دختلوکـال ۱۲۱۰ ع ۶۰۷ هـ ق ــ دمرګ ډول ... ــ دمرګ کـال ۱۲۱۰ ع = ۶۰۷ هـ ق

**کيفيت !**

آرام شاه دقطب الدين زوی ؤ چه دتخت نه کوز او معزول کړای شو .

٤ ــ نوم: شمس الدین ــ شهرت التمش ــ تخت ته دختلو کـال ۱۲۱۱ = ٦۰۸ هق ــ دمرګ ډول په طبیعي مــرګ مړ شو دمــرګ کـال ۱٤۳٦ ع =٦۳۳ هق.

**کیفیت:**

دی دسلطان قطب الدین زوم ؤ، ده دقطب مینار ودانی تکمیل او پوره کړه دده په عصر کښې په هندوستان چنګیز حمله کړې وه.

٥ ــ نوم: رکن الدین فیروز شاه ــ شهرت رکن الدین ــ تخت تــه دختلو کال ۱۳۳٦ ع = ٦۳۳ هـ ق ــ دمرګ ډول ... ــ دمرګـ کـال ۱۲۳۷ ع = ٦۳٤ هـ ق.

**کیفیت:**

دسلطان شمس الدین زوی ؤدی د(۷) میاشتی حکومت نه وروسته دتخت نه کوز کړ ای شو.

٦ ــ نوم: رضیه بیګم ــ شهرت سلطانه رضیه ــتخت ته دختلو کال ۱۲۳۷ = ٦۳٤ ق ــ دمرګ ډول وژل شوه ــ دمرګ کال ۱۲۳۹ ع = ٦۳۷ هـ ق.

**کیفیت:**

دسلطان شمس الدین التمش لور ده اوډیره هوښیاره او دپاخه عقل میرمن وه ددی قبر دډهلی په بلبلی خانه کښې دی.

۷ــ نوم: معز الدین بهرام شاه ــ شهرت بهرام شاه ــ تخت ته دختلو کال

۱۲۳۹ ع = ٦۳۷ ﻫ ق -- دمرګ ډول په قید کښې مړ شو -- دمرګ کـ ال

۱۲٤۱ ع = ٦۳۹ ﻫ ق .

**کیفیت :**

درکن الدین فیروزشاه زوی ؤ.

۸ -- علاو الدین -- شهرت مسعو دشاه - تخت ته دختلو کال ۱۲٤۱ ع

= ٦۳۹ ﻫ ق -- دمرګ ډول و وژلای شو -- دمرګ کـال ۱۲٤٦ ع

= ٦٤٤ ﻫ ق .

**کیفیت:**

د سلطان شمس الدین زوی ؤ .

۹-- ناصر الدین محمو دشهرت ... تخت ته د ختلوکال ۱۲٤٦ ع =

٦٤٤ ﻫ ، ق -- دمرګ ډول په خپل مرګ مړ شو دمرګ کال ۱۲٦٥ ع

= ٤٦٤ ﻫ ق .

**کیفیت:**

دسلطان شمس الدین التمش زوی او ډیر نیک پادشاه ؤ.

۱۰ -- غیاث الدین -- شهرت بلبن -- تخت ته دختلو کال ۱۲٦٥ ع =

٦٦٤ ﻫ ق -- دمرګ ډول په طبیعی مرګ مړشو دمرګ کال ۱۲۸۷ ع =

٦۸٦ ﻫ ق .

**کیفیت .**

دسلطان ناصر الدین محمود اخښې او وزیر ؤداپاچا دډیر شان او شوکت او ښه نوم خاوندؤ، دده په عصر کښې دډهلی رونق ډیر زیات ؤ

ډېر باغونه او دسیل ډېر ځایونه پکښې جوړ شوي ؤ له دې کبله به خلکو ډهلی په طرب آباد نوم یاداوه .

۱۱ ـ نوم: معزالدین کیقباد ـ شهرت کیقباد ـ د تخت ته د ختلو کال ۱۲۸٦ ـ دمرګ ډول ووژلای شو ـ د مړګ کال ۱۲۸۸ .

**کیفیت** :

د غیاث الدین بلبن لمسی او د غوري خاندان (۱) وروستی پاد شاه ؤ .

---

(۱) د واقعات هند مصنف داسې لیکلي دي چه په ده غوري خاندان ختم شو او حقیقت هم دا دی او زما هم دا خیال دی ، چه مؤرخینو د تعصب نه کار اخستی دی اوقطب الدین خاندان ئې خاندان غلامان لیکلي دي په پښتنو کښې دآغا او غلام فرق نه ؤ . (غازی)



## د ډهلي پښتانه خلجي پاد شاهان د ۱۲۸۸ څخه تر ۱۳۲۰ پورې :

۱ ـ نوم: جلال الدین فیروز خلجی ـ شهرت جلال الدین خلجی ـ تخت ته دختلو کال ۱۲۹۰ ع = ٦٨٩ هـ ق ـ د مرگ ډول و وژلای شو ـ مرگ ۱۲۹۵ ع = ٦٩٤ هـ ق .

**کیفیت:**

دا پښتون پاد شاه ډېر ساده طبیعت خاوند ؤ، او کیقباد ده وژلی ؤ دده په وخت کښې دکن فتح او دده په سلطنت کښې گډ ا و شامل شو ، دی د علاوالدین خلجی د لاسه په چم اوچل و وژلای شو .

۲ ـ نوم: علاوالدین خلجی ـ شهرت علاوالدین ـ تخت ته د ختلو کال ۱۲۹۵ ع = ٦٩٤ هـ ق ـ د مرگ ډول په طبیعي مرگ مړشو ـ مرگ ۱۳۱٦ ع = ۷۱٦ هـ ق .

**کیفیت :**

دی ډېر جلیل القدر پاد شاه و ، ده گجرات فتح کړ او د سومنات په خنگ کښې ئی مسجد ودان کړ ، د مغلو کبر ئی مات کړ په تلنگانه ئې حمله او په چتوړ ئی بريد وکړ .

۳ـ نوم: قطب الدین مبارك شاه ـ شهرت مبارك شاه ـ تخت ته دختلو کال ۱۳۱۷ ع = ۷۱۷ هـ ق ـ د مرگ ډول د خپل یو معتمد هندو له لاسه و وژلای شو ـ

**کیفیت:**

دی د سلطان علاوالدین خلجی زوی ؤ، ده گجرات و نیو ، په

هند و انو ډېر مهربانه و اوهمدا وی ته ئی دحکومت مهم کارونه سپارلی
ؤدی په یو خسرو نومی هندو مین ؤ او د حکومت په چارو کښی به ډسی
لههغه سره سلاکوله . متعصبو مسلمانانو دده دغه کارونه نه خوښول
اوتل بهئی ورڅخه شکایت کاوه ، ددی خبره گان په اثر دخلکو لهخوا
په ده پسی دا سی خبری وترلی شوی چهددی ورڅخه خبر هم نه ؤ
په نتیجه کښی دی د خپل دغه معتمد لهلاسه پهخپل محل کښی په ډیره
بی رحمی و وژلای شو . ددی هندو نوم خسرو و .



## پهٔهلی کښی دپښتنو دتغلق دکورنۍ حکومت

۱ ـ نوم: غیاث الدین تغلق ـ شهرت. ـ تخت ته دختلو کال ۱۳۲۱ ع = ۷۲۱ ه، ق ـ د وفات دول دخونی لاندی مړ شو ـ وفات ۱۳۲۵ ع = ۷۲۵ ه، ق:

**کیفیت:**

دی ډیر ښه پاچا و، ده تجارت ته ډیر ه ترقی ورکړه ورا نگل ئې ونیوا ود بنگال صدیدار ئې مغلوب کړ، په هغه وخت کښی چه دی په افغانپور کښی په هغه محل کښی چه د لرگو نه ئې جوړ کړی و دخپل زوی سره دملاقات په وخت کښی دغه محل په ده ولویداو ور لاندی مړ شو.

۲ـ نوم: محمدتغلق ـ شهرت الغخان ـ تخت ته دختلو کال ۱۳۲۵ ع = ۷۲۵ ه، ق ـ دوفات دول طبیعی مرگ ـ وفات ۱۳۵۱ ع = ۷۵۲ ه، ق.

**کیفیت:**

دی ډیر فیاض، عالم او په علم مین اوعلم پالونکی باد شاه و، ده پهٔدکن کښی دیوی نگری و دان کړ اوهغه نوم ئې دولت آباد کښیښود، ده په خپل عصر کښی دخرمنی نوټ جاری کړ چه دسرو زرو میخونه بهٔو ر باندی ټک وهل شوی و.

۳ـ نوم فیروز تغلق ـ شهرت ـ فیروز شاه ـ تخت ته دختلو کال ۱۳۵۱ ع = ۷۵۲ ه، ق ـ دوفات دول طبیعی مرگ ـ وفات ۱۳۸۸ ع = ۷۹۰ ه، ق:

کیفیت ،
دی دمحمد تغلق د تره زوی او ډیر ښه اونیک نام بادشاه و ، ده ډیر نهـــر و نه وکښل او ډیر محصو لونه ئې معاف کړل اود عما رتو نو دودانولو سره ئې ډیره مینه لرله .

٤ـنوم: غیاث الدین تغلق ثانی ـ شهرت . ـ تخت ته دختلوکال ١٣٨٨ ع = ٧٩٠ ه،ق ـ دوفا ت ډول ووژل شو ـ وفات ١٣٨٩ ع = ٧٩١ ه، ق .

کیفیت :
دی دفیروز شاه تغلق لمسی و .

٥ـ نوم: ابو بکر تغلق ـ شهرت . ـ تخت ته د ختلوکال ١٣٨٩ ع= ٧٩١ ه ، ق ـ دوفات ډول . . . ـ ... ـ

کیفیت :
دی هم دفیروز شاه تغلق لمسی و .

٦ـنوم: ناصر الدین محمدتغلق ـ شهرت ... ـ تخت ته د ختلوکا ل ١٣٨٩ ع =٧٩١ ه ، ق ـ دوفات ډ ول په‌خپل مرگ‌مړ شو ـ وفات ١٣٩٢ ع =٧٩٤ ه ، ق ـ

کیفیت :
دی د فیروزشا ه تغلق زوی و .

٧ـنوم: همایون تغلـق ـ شهرت سکندرشاه تغلق ـ تخت ته دختلو کال ١٣٩٢ ع = ٧٩٤ ه، ق ـ دوفات ډول په‌خپل مرگ مړشـو ـ وفا ت ١٣٩٢ ع = ٧٩٤ ه ، ق .

**کیفیت :**

دی د ناصرا لدین محمد تغلق زوی و.

۸- نوم: محمود ابن محمدشاه - شهرت سلطان محمود تغلق - تخت ته د ختلو کال ۱۳۹۲ ع = ۷۹٤ ه، ق - د وفات ډول په خپل مرگ مړشو - وفات ۱٤۱۳ ع = ۸۱٦ ه، ق.

**کیفیت :**

دی دسکندر شاه تغلق زوی و. دده په عصر کښې گوډ مغل تیمور ډهلي ته راغی.



**په پنځلسمه پېړۍ کښې د پښتنو سیدانو حکومت د ۱۴۱۴ نه تر ۱۴۴۳ پورې :**

۱ـ نوم: سیدخضرخان ـ شهرت... تخت ته د ختلو کال ۱٤۱٤ ع = ۸۱۷ ق ه دوفات وړول په طبیعي مرګ مړشو دوفات کال ۱٤۲۱ ع = ۸۲٤ ق ه .

کیفیت :
دی ډېر نیک پاچاؤ خپل کوم خطاب ئې نه دی مشهورکړی مګر په ډېره هوښیار تیائی خپل حکومت چاولی دی :

۲ ـ سید معز الدین ابوالفتح شهرت ـ سید مبارك شاه تخت ته دختلو کال ۱٤۲۱ ع = ۸۲٤ ه ق دوفات وړول و وژلای شو دوفات کال ۱٤۳۳ ع = ۸۳۷ ه ق.

کیفیت :
دی دخضرخان زوی و، ده ډېری یاغي صو بې ببرته دو باره ایل کړې، دی دده سرورالملك نومی وزیر په چا ووژه :

۳ـ نوم: سید محمدشاه ـ شهرت ... تخت ته دختلو کال ۱٤۳۳ع = ۸۳۷ ه، ق د وفات وړول په طبیعي مرګ مړشو د وفات کال ۱٤٤۳ ع = ۸٤۷ ه ق :

کیفیت :
دی د مبارك شاه لمسی ؤ ده دخپل نیکه مبارك شاه انتقام دوزیر سرور الملك نه په دې وړو ل واخیست چه دی ئې په چاووژ ه، دده په عصر کښې بهلول خان نومې شخص د سلطنت د عوا کړه :

٤نوم: سيد علاوالدين شاه ـ شهرت ::: تخت نه د ختاو کال ١٤٤٣ ع =٨٤٧هـ ق وفات ئول بدايون کښی په طبيعی مرگ مړشو دوفات کال ١٤٥٤ .

**كيفيت :**

ده په ١٤٥٠ ع = ٨٥٥هـق کال کښی خپل سلطنت اودی بهلول خان ته وسپاره او بدايون ته چه په دغه ځای کښی دده ملکی او باغونه وو ولاړاو ترخو چه ژوندی ؤ دسلطان بهلول لودی له خوا ده ته دده دگذارې دپاره تنخواه ور کول کېدله .



## په ډهلي کښې د لودي پښتنو پاچهي له ۱۴۵۰ څخه تر ۱۵۲۶ پورې:

۱ـ نوم: بهلول لودي ـ شهرت سلطان بهلول خان لودي ـ تخت ته دختلو کال ۱٤٥۰ع = ۸٥٥ ﻫ ق ـ دمرګ ډول په طبيعي مرګ مړ شو دمړيني کال ۱٤۸۸ ع = ۸۹٤ ﻫ ق .

کيفيت :

دی دپنجاب او ملتان حاکم وو په ۱٤٥۰ کښې ئې د پښتنو د سيد انو بادشاهانو وروستي بادشاه علاوالدين ته وظيفه مقرره کړه او په بدايون کښې ئې کښيناوه او پخپله دډهلي په تخت کښيناست او دلودي حکومت بنسټ ئې کښيښود اوکومې سيمې چه ياغي شوې وې هغه ئې ايلې کړې .

۲ـ نوم: نظام خان ـ شهرت سکندر لودي تخت ته دختلو کال ۱٤۸۸ع = ۸۹٤ ﻫ ق ـ د مرګ ډول ـ په طبيعي مرګ مړ شو ـ دمړيني کال ۱٥۱۷ ع = ۹۲۳ ﻫ ق .

دی دسلطان بهاول لودي زوی دی ډير لوی پاچا تير شويدی دبهار سيمه ئې فتح کړې وه او چند يرې ئې نيولې وه .

۳ـ نوم: محمد ابراهيم ـ شهرت ـ سلطان محمد ابراهيم لودي ـ تخت ته دختلو کال ۱٥۱۷ ع = ۹۲۳ﻫ ق ـ د مرګ ډول دپاني پت دجنګ په ميدان کښې دمغلو سره په جنګ کښې شهيد شو . ـ د مړينې کال ۱٥۲٦ ع = ۹۳۲ ﻫ ق .

**كيفيت :**

دی دسلطان سکندرلو دی‌زوی دی چه دپانی پت په میدان کښی دظهیرالدین بابر مغلی‌بادشاه سره دجنګ په‌وخت کښی‌شهیدشوی دی ده به ددښمنانو په مقابل کښی پخپله جنګونه کول‌اوپخپله به ددښمن مقابل ته ور ووت .



## په هند کښې د پښتنو سوري کورنۍ حکومت:

۱- نوم: فريدخان- شهرت شيرخان چه په شيرشاه نوم هم شهرت ومونده- تخت ته د ختلو کال ۱۵٤۰ ع ۹٤۷ هـ ق - د مړينې ډول د جبه خانې د الوتلو په اثر مړ شو- د مړينې کال ۱۵٤۵ ع ۹۵۲ هـ ق -

**كيفيت :**

دی ډیر ښه پوه او هوښيار باد شاه ؤ او هر څوك ور نه خوشحاله و، دده ډیر ښکاره کار دده د هغه لوی سړك تیرول دی چه بنګال او پیښور ئې د یوبل سره نښلولی دی.

دا سړك تقريباً څلور زره میله او زد دی، دد ی سړك په غاړه ومیوه داري ونې کرل شوی وې او دد و و- ذ وو میلو نو په فاصله یوه یوه څا د مسا فرود پاره کینل شوې وه او په یو مزل فاصله یو پړ او یعنی سرا ی جوړ شوی وچه په د غه سرا ی کښې به مسا فروته د با د شاه له خوا خوا ړه ورکول کیدل، دده بل مهم کار د مځکو د اسې انتظام کول وچه تر ننن ورځې په د غه انتظام عمل کیږی.

۲- نوم: سليمشاه يا اسلام شاه سوري- شهرت سليم شاه عادل- تخت ته د ختلو کال ۱۵٤۵ ع ۹۵۲ هـ ق - د مرګ ډول په طبيعي مرګ مړ شو- د مړيني کال ۱۵۵۳ ع ۹٦۱ هـ ق-

**کیفیت:**

د ی د شیرشاه سوري زوی و، کوم ځای چه نن په ډهلي کښې د لال قلعه په نوم یا د یږي ددغه ځای نقشه همدی پادشاه جوړه کړی وه او یوه برخه ئې وډانه کړی هم وه چه د سلیم ګړ په نوم یادیدله، مغلو د هغه تعصب په اثر چه پښتنو سره ئې لاره دغه برخه په نور ګړ نوم مشهوره کړه په هغې بانبدی ئې دلال قلعه نوم کښیښود، ده د ډهلی او اګرې په ځای ګوالیار خپله دارالخلافه وټاکله.

۳ـ نوم: محمد شاه: شهرت ـ عادل ـ تخت ته د ختلو کال.
د مړینې ډول: د مړینې کال:

**کیفیت**

سربیره پر ده د وه دری نور همداسی کوچنی بادشاهان تیرشویدی چه دیاد ولو وړ نه دی.

له ۱٥٤۰ نه تر ۱٥٥٦ پوری سوری کورنۍ پاچهی وکړه د سوریانو نه وروسته مغل همایون ډهلی ونیو او د پنـــه وروسته تر ۱۸٥٧ پوری هندوستان د مغلو د سلطنت او حکومت لاندی پاته شو.

# دډهلي پر سینه دپښتو نقش

ددی موجوده نوی اوزوړو هلی دځینوآثاروا وعلاموڅخه څرګندیږی چه دا دواړه یعنی نوی اوزوړه هلی د پښتو دډهلی ګانوپه کنډ والو اوبنسټ ودان شویدی ، ددی ډهلی ګانو ودانوونکو ځایونوپه انتخاب کښی د ډیرفکرا وزیارڅخه کارنه دی اخیستی ، او اوس چه دا یوولسم ډهلی (د هغو خلکو د پاره وداڼیږی چه هغوی د مغربی پاکستان څخه راغلی دی) دا ډهلی هم د هغه ډهلی په کنډوالو او بنسټ جوړیږی کوم چه پښتو جوړکړی اوودان کړیدی، ددی مدعی د ثبوت د پاره موږ کاکانګر، سند رنګراو چیت نګر، جنګ پوره ، د نظام الدین د ریل ټیسن، مالویه نګر، کالکاجی اونوږډیرنګرونه وړاندی کولای شو.

کوم سرزمین چه د ډهلی په نامه یادیږی په هغه محکمه دړا جپوتو د ډهلی نه وروسته یوولس ډهلی ګانی ودانی شویدی ، له هغو څخه لومړی ډهلی هم د قطب الدین په نوم دمهرولی په شاوخوا کښی ودان وچه ددی ډهلی ودانوونکی غوری پښتانه و ، قطب مینار د قوت الاسلام مسجد (چه

د سلطان شمس الدین التمش مقبره هم په دې مسجد کښی ده ) او مهرولی او نور ددې ډهلی یا د ګنا رونه دی :

د وهم ډهلی چه ددی ډهلي نوم [ سیری ] ؤ سلطان علاوالدین خلجی په ۱۳۰۳ کښی ودان کړ ، دا ډهلی ګرد اومد ورو په دې وخت کښی دد غه ښار کنډ رونه د یوسف سرای ، حوض خاص ، او ما لویه نګر په شا وخوا کښی مونډل کیږی ، په پخپو کښی چه لږی لږی کومې ګنبدی او کنډ والی لید لی کیږی تول د هغه ډهلی د یا د وافسانه اوروی کوم چه په یو وخت کښی ئی د [ سیری ] په نوم شهرت د رلود .

دریم ډهلی [ تغلق پښتنو ] د تغلق آباد په نوم ودان کړی و ، دا ډهلی د قطب مینار په لمر خاته ارخ کښی څلور میله لری پروت و ، دا ډهلی سلطان غیاث الدین تغلق ودان کړی و ، د غیاث الدین مقبره او په غر ونو کښی د تغلق د کلا نړید لی د یوالونه او د تغلق آباد کنډ والی او نړید لی د یوالونه اوس هم د یا دګار په ډول موجود دی .

څلورم ډهلی چه په [ جهان پناه ] نوم ئی شهرت د رلود د تغلق پښتنو د وهم باد شاه محمد تغلق ودان کړی ودد ی ښار ( ۱۳ ) د روازې وې چه ( ٦ ) د شمال لورته او ( ۷ ) دجنوب

لورته وې روښن چراغ ډهلي ، مسجد بیګم پور ، و ځهیا منډل او نور عمارتونه د دغه ډهلي یادګارونه دي :

د پښتنو پنځم ډهلي [ د فیروزآباد ] په نوم فیروز شاه تغلق ودان کړی و ، دا ډهلي د موجوده پرانی ډهلي یعنی زوړ ډهلي بازه هند و راو ، اونوی ډهلي پوري خپور پروت و د دی ډهلي یادګار د ډهلي دروازی نه د باندی د بندی خانی په مخکښی کابلی دروازه ده چه په دغه ځای کښی په ۱۸۵۷ کال کښی هډسن نومی پرنګی د بهادر شاه زامن وژلی وو او همدغه راز د دغه ښار د فیروز شاه د کوټلې کنډرونه هم موجود دی ، سربیره پردی ترکمان ګیټ او په بازار سیتارام کښی لوی مسجد او په بازه هند ورا وکښی قدم شریف د فیروزآباد د یادګارونه دی د فیروز شاه تغلق د زوی شهزاده فتح خان قبر هم په دغه قدم شریف کښی دی :

شپږم ډهلي چه د [ غیاث پور ] په نوم یادیده غیاث الدین بلبن ودان کړی و ، دا ډهلي د نظام الدین اولیا درګاه ته نژدې و ، دا ډهلي هم غوري پښتنو دان کړی دی ، د دې ډهلي په یو عمارت کښی مولانا اخلاق د شرقي علومو یو کالج قایم او تاسیس کړیدی ،

اووم ډهلی هم غوري پښتنو په [ کوګړی ] معزالدین کیقباد ودان کړی و ، پههمدی ځای اتم ډهلی د خلجی خاندان وروستی پاچا قطب الدين مبارك شاه شهيد په «مبارك آباد» نوم ودان کړی و .

«کاوګړي » نومی ځای دهمدې ډهلی ګانو یادګار دی .

نهم ډهلی دسوري پښتنو ، ددې ډهلی حدود دفرنګیانوله دېنوی ډهلی څخه دمغاو د ډهلی تر «لال قلعه» پوري رسيدلی و ،شیرګړ ، پرانا قلعه (سلیم ګړ ) ( لال قلعه ) او شیر شاه میس څخه جګ فصیل اوعظیم الشانه دروازه اودهمايون دمقبرې په څنګ کښې دعیسی خان سوري کلی ددې ډهلی یادګار دی .

دمغلو زوړاو دفرنګیانو نوی دهلی او کوم ډهلی چهدمغربی پاکستان څخه راغلی خلك نوی ودانوی دغه نهم - لسم اویوولسم ډهلی ګاندی .



# دغوري پښتنو یادګارونه

د پښتنو د عمارتو نو یوه ځرګنده برخه او بنا ر ز حیثیت دا و چه له دوی ځخه د پښتنو شان او شوکت او د بد بـه او هیبت او وقار ځرګندیده او پښتنو دخپلو اکثر و و دا نیو پښتو نه په غرو نو او یا ډبرو ایښو دلی دی چه دقلعهٔ تغلق او تغلق آباد ښار کنډ وا لې ددې مدعی د اثبات دپاره غو ره شا هدان دی.

دغوري پښتنو په یادګار ونو کښې قوت الاسلام مسجد قطب مینار ترکمان ګیټ او په بازار سیتارام کښې په کوچهٔ بلبلي خانه کښې دسلطانـه رضیه مقبره او حوض شمس، ملک پور، مهرولـی او نورې و دا نۍ هم دپښتنو غور یا نو یادګـار و نه دی.

**قطب مینار:**

قطب مینار دغوري پښتنو یو داسې یادګـار دی چه په نړۍ کښې ډیر زیات شهرت لري، دا مینار دمغلي او پرنګي دهای ګانو ځخه (۱۱) میله لرې پروت دی، و ائي چه دا مینا ره (۷) منز له جګه وه چه نن له هغو ځخه یوازې پنځه پاته دی په دی موجـوده حالت کښې دا مینار (۲۳۸) فټ جګو الی لري چه کښتنۍ خوائې (۴۷) فټ او پورتنۍ خوائې (۹) فټ پلن والي لري، په ۱۳۰۰ ع کښې

ددي په و دا نيږ هغه ساطان قطب الدين غور ی چه په هند و ستان کښې دسلطان محمد غور ی دقوت الاسلام نومی مسجد دباني او موسس قايم مقام و پيل کړی و ، ددی مينا ر په لومړی منزل دقرآ ن مجيد آيتونه کښل شويدی، ده نور و سته دده ز و م سلطان شمس الدين التمش ددی مينار نور پاته منزلونه تکميل او ودان کړل په ۱۳۵۱ کښې سلطان فيروز شاه تغلق او په ۱۳۸۸ کښې سلطان بهلول لو دی د امناره ترميم کړه ، ددې منارې په هر منزل او پوړ ډول ډول نقشونه جوړ کړای شويدی ددې منارې داوړی پوړ (۱۵٦) پوړی او د دوهم پوړ (۷۸) او ددريم پوړ (٦۲) او دڅلورم او پنځم پوړ پنځوس پنځوس پوړی دی ددې منارې په دوهم پوړ دسلطان شمس الدين التمش دنوم کتيبې هم په عربی تورو کښل شويدی ، ددې منارې په څنګ کښې دقوت الاسلام نومی مسجد په ګنبده کښې يو قبر هم شته :

## د سلطان غازی مقبره :

د مهرولی نه د پنځو ميلو په فاصله دجنوب خواته په يو غار کښې کينل شويدی دغه دسلطان ناصر الدين محمود بن شمس الدين ا لتمش قبر دی ، دی ډير منصف ، صوفی او رعيت پالونکی پادشاه وده به په خپلو لاسو ځان دپاره دوډۍ پيداکوله او ده ته له خزانې څخه يوه پيسه هم په خپل ځان لګول ملي خيانت ښکاريده ، ددې قبر په

څنګ کښې دمړ مړ دډېرې یو کوچنې مسجد هم شته چه اوس بالکل خوشي او وران پروت دی :

**دسلطان غیاث الدین بلبن مقبره:**

دمهرولی دقصبې په شا اوخوا کښې ترلرولرو ځایو پورې چه څو مړه وران اونړیدلی عمارتونه اوکنډ والې او مقبرې او نړیدلی قصرونه او نور لیدل کېږي په دغو ورانو و دانیوکښې دسلطان غیاث الدین عالیشانه مقبره هم شته چه اوس بیخی نړېدلې او ورانه شوې ده ، دا عالیشانه مقبره معز الدین کیقباد و دانه کړې وه ، او ددې په څنګ کښې دسلطان غیاث الدین بلبن د ولی عهد شهزاده خان شهید و رانه او نړېدلې مقبره هم ده :

**ملک یار پران او قلندر طوسي :**

دغور یانو د بنبني د ورې د وه یادگار ونه دمتهرا روډ نومي سړک د پاسه د پرانی قلعه په څنګ کښې « د کټو و پیر » او « ملک یار پران » قبرونه دي. دکټو و دپیر اصلي نوم ابابکر طوسي دی ، دی یو مست الست قلندر و ، اوملک یار پران چه دده اصلي نوم شیخ نورالدین دی چه د شیخ اعزالدین دا نیال خلجي مرید او خلیفه و هرکاله چه دی د سلطان غیاث الدین بلبن په وخت کښې ډهلی ته راغی نو ده داباکر طوسي قلندر دځای په مخکښې ډېره واچوله . د ملک یار پران وجه تسمیه اویا په بل عبارت ددې پران نوم سبب خلکو داسې ښودلی دی چه هرکاله شیخ نورالدین ډهلي ته راغی او داباکر طوسي

ځای په مخکښې ئې ډېره واچېله نو قلندر طوسی ورته و ویل چه « ته په دې ځای کښېږې دپاچا دا جازې څخه نشې اوسېدلای » .

سلطان غیاث الدین بلبن په دغه وخت کښی په ډهلي کښي و ، شیخ نور الدین د خپل باطني قوت په مرسته شپه په شپه ډهلي ته سلطان لره ځان ورساوه اودملاقات نه وروسته ئې ورته ټول کیفیت بیان کړ ، باداه چه په فقیر انو ئې ډېره عقیده لرله في الحال د دغه ځای اجازه ورکړه او دلنگر دپاره ئې دڅلورو کلیو د جاگیر فرمان جاری کړ - هرکله چه شیخ نور الدین دافرمان دا بابکر طوسي څخه راوړ نوهغه ورته وویل چه « ددې د رویش به فرشتې تابع وی چه په هوا ولاړا وپه هوا راغی » .

د ملک یار پران قبر د نیشنل سټېډیم په خوا کښی د متهرا روډ نومی سړک خواته پروت دی او په دې ځای کښی دفارسی د مشهور شاعر مرزا عبدالقادر بیدل قبر هم دی .

د « زمرد پور » پنج برج او د سنگر خان مقبره :

زمرد پور نومی کلی د موجوده ډهلي څخه د جنوب خواته څلور میله ېېرته پروت دی ، وائي چه دا کلی هم د غوری پښتنو د وخت او عصر دی ، په دې کلی کښی ډېرو اوچتې څخه جوړ شوی پنځه برجونه دی او په دغو پنځو برجونو کښی ډېر قبرو نه هم شته چه کوم کتیبه او لیک نه لری د زمرد پور په خنگ کښی دلنگر خان پښتون مقبره ده چه داهم د غوری پښتنو یادگار دی .

# دخلجو پښتنو یادګارونه

د خلجو پښتنو د کورنۍ مؤسس او باني جلال الدین خلجي و ، او د دې کورنۍ نامتو پاچا سلطان علاوالدین خلجي و ، ده په « سیري » نوم یو ډهلي ودان کړی و چه په دغه ځای کښې د ده علائی قلعه هم ده چه نن ددې ښا راو کلا بې د ورانو کنډر و نو څخه بل څه نه دی پاته ، دې بادشاه سربېره په هزارستون ماڼۍ د ( پرانی قلعي ) یعنی زړې کلاترمیم هم کړی و ؛ دقطب مینار ښی اړخ ته چه یو وران برج دکنډ والي په شکل لیدل کیږي دغه دعلاوالدین محل او قصروا و په دغه ځای کښې دده قبر دی چه تعویذ ئې چا پټ اوغلا کړی دی .

ګــو نبجتی تهـی جـن کـی نــوبت سـی زمین و آسمان
چـپ پړی هین مقبرون مین هون نه هان کچهه بـهی نهین

ده دقوت الاسلام نومی مسجد په لمر پر یواته کښې دقطب مینار نـه هم د یو لوی مینار په ودانو لو پیل کړی وچه دغه مینارنن هم په نـامکمل صورت موجود دی ، دمسجد قوت الاسلام عـلائی دروازه او حوض خاص هم دده یادګارونه دی ، دنظام الدین اولیا د مقبرې په لمر پر یواته خوا کښې دعلاوالدین خلجي یود پرشاندار مسجد هم شته ،

دا مسجد د ري برخې لري د دې مسجد منځنۍ برخه اوی وه گنبد ه علاؤ الدین خلجي ودانه کړېده او یوه خوا او بله خوا ئېدده زوی شهزاده خضرخان ودانه کړیده ، دا عالي شان مسجد د سرې تیزی ځخه ودان شویدی او ددې مسجد په دباندی او دننه په کوفي خط د قرآن مجید آیتونه کینل شویدی ، ددې مسجد په جگه گنبد ه کښې د سر وزرویو کڅوری ځوړ ند دی ، په دې کڅوری د گولیو نښې هم شته ، وائي چه داکڅوری غلو په ټوپکو ویشتلي وا وغوښتل ئې چه د ټوپکو په زو دغه کڅوری مات کړی مگر د وی ړا نده شول او دخپل دغه فاسد عزم ځخه وگرځېدل :

## علائي دروازه :

د قطب مینار په څنگ کښې د ښکلي دروازې نوم علائي دروازه ده چه ددې دروازې شاو روخوا و ته دسنگ مرمر او سنگ خارا څلور دروازې دی دا ځای علاوالدین خلجي په ۱۳۱۰ ع کال کښې ودان کړ ، ددې ځای په څنگ کښې پاچاهي محل وچه اوس وران شوی او دیوې کنډ والې صورت ئې موندلی دی او یوازی د دغه دروازه دیادگار په ډول پاته ده ، ددروازې دېوالونه له دننه خواڅخه ۳٤ مربع فټ دی او آثار ئې

د ريږگزه پلن دی په دغو ټولو د پوالونو اود رواز وښکلی نقشونه کینل شو یدی پدې ځای کښی به علاوالدین خلجی دربار کاوه.

علائی مینار :

علاوالدین خلجی ددې مینار په ودانۍ په ۱۳۱۱ ع کال کښی پیل کړی و، سلطان دا اراده لرله چه دا مینار د قطب مینار د منارې څخه هم ډیر جګ او لوړ کړی اود همدې مفکورې په اساس ئې ددې مینار ری بنسټ او بنیاد د قطب مینار د بنسټ او بنیاد د څخه ډیر پلن اولوی اوارت ایښو دلی دی . افسوس چه د غه ودانی سرته ونه رسېدله او ددې نیمګړی د پوالونه د زمانې لاسونو داسې وړ ول چه نن د هغې نیمګړی ودانۍ یوازی نخښې پاته دی ، لیکن سره د دې هم دغه نړیدلې ودانۍ د لیدلو سره تعلق لری.

# د تغلق پښتنو یادګارونه:

د تغلق آباد کلا:

دا کلا د پښتنو د تغلق د کورنۍ باني سلطان غیاث الدین تغلق ودانه کړې ده، په یوه زمانه کښې دا کلا ډېره عظیم الشانه او ښکلې کلا وه لیکن اوس ورانه او یجاړه شوې او په کنډر بدله شوې ده، د دې ښکلې کلا بنسټ په غره کښې په تېز او اېښودل شوي او په ځینو ځایو کښې اوس هم ځینې داسې دیوالونه او فصیلونه شته چه د دې ښکلې او عظیم الشانې کلا د عظمت او ښکلي توب ترجماني کوي، په دې کلا کښې چه کومې پادشاهي ودانۍ وې هغه بېخي د منځه تللې او داسې محوه شوې دي چه هیڅ نخښه ئې نه ده پاتې چه په دې لړ کښې هغه پاچاهي ماڼۍ چه په [ جهان نما ] نوم ئې شهرت درلود او پادشاهانو به پکښې دربار ونه کول بېخي محوه او ورانه شوې ده. د دې کلا په خصوص کښې عمومي نظر په داده چه په نړۍ کښې له دې کلا څخه لویه کلا نه وه، د دې کلا (۵۶) ګوټونه او (۵۲) دروازې وې.

د اکلا د دې موجوده ماڼۍ او دانګریزانو دوړای څخه مخنوب شو اته شپږ میاه بیرته پرته ده، د دې کلا د ریو

څو اووي يعني شرق ، شمال ، جنوب ته په تغلق آباد نومې
د ډهلي يو ښار ودان و .

دغياث الدين تغلق مقبره:

دا مقبره دسلطان غياث الدين تغلق زوي و دانه کړيده چه ده په
سلطاني خطاب [ الغ خان ] او د پاچاولي عهدو ، د سلطان د
وفات نه وروسته ده خپل لقب محمد تغلق غوره کړ ددې مقبرې فصيل
د سنګ خارا او چړ نې څخه جوړ شويدی او د ننه او
د باندی خوا ئې له ډيرې ښکلي سرې ډبرې څخه جوړه
شويده او ځاى په ځاى پکښې د سرو مرمرو کرښې او
ګلان او بوټې هم جوړ شويدي ، د برج د پاسه
د سرې ډبرې يو کټوری هم جوړ شويدی چه لږ غوندی
مات شوی دی ، افسوس چه نن دغه ځاى زمانې بيځي
وران او خراب کړی دی ، د مقبرې په برج کښې دننه
درې قبرونه دي لويې مرې هغه قبر چه د برج په منځ کښې دی
هغه د غياث الدين تغلق قبر دی ، او دده وهم قبر په خصوصي
کښې و ائې چه دده د زوى محمد تغلق قبر دی چه داباسين
په غاړه مړ شوی و ، کېدای شي لکه څنګه چه دشير شاه
مړی پښتنو سهسرام (بنګال بهار) ته وړی او په هغه
ځاى کښې ئې ښخ کړی ؤ دغه راز دي سلطان فيروز شاه تغلق هم

د سلطان محمد تغلق مړی په ډهلی ته وړی او دخپل پلار په څنګ کښی دی ښخ کړی وی ، د ریسم قبر د غیاث الدین تغلق د کډی او د سلطان محمد تغلق د مور قبر دی چه ددې پاچاهی [ خطاب مخدومهٔ جهان ] و ددې دری وارو قبرو نو تعویذونه چاوړی دی او ددوی په قبرونو یو ازی خښتی او چونه پاته ده .

**هزار ستون ماڼۍ :**

هزار ستون نومی عمارت د تغلق کلاته نژدې پروت دی ، دا عمارت سلطان محمد تغلق ودان کړی و ، د ده په وختو کښی دده د دربارشاعر [ بدرچاچی ] نومی یو شخص و ، دغه درباری شاعرددې قصر تاریخ [ فد خلوها ۷۳۸ ه ] ویلی دی وائی چه په یوه زمانه کښی دا عمارت ډیر ښکلی او نفیس عمارت و ، په دې عمارت کښی د سنګ خارا زر ستنې کارشوی او لګېدلی وې له دې کبله دا عمارت په هزار ستون نوم یادیده ، نن دغه عمارت خراب او بر باد پروت دی او خلک پکښی غوائی او وزې او پسونه تړی .

**د نظام الدین اولیا مقبره :**

دا مقبره هم په ۱۳۲٤ ع کال کښی سلطان محمد تغلق ودانه کړې ده ددې مقبرې گنبده په پښتنی طرز جوړه شوې ده .

## د روشن چراغ زیارت :

دا زیارت هم دمغلي او دانګریزي د هلي نه جنوبي اړخ ته شپږ میله لرې پروت دی ، داد شیخ نصیر الدین محمود روشن چراغ دهلوي زیارت دی سلطان فیروز شاه تغلق په ده ډېره عقیده لرله او تل به ئې دده خدمت کاوه ، دده ګنبده سلطان فیروز شاه تغلق ودانه کړېده ، دازیارت دوولس دروازې لري او دسنګ خارا ستنې پکښې کار شوېدی او په ټولو دروازو کښې دسرې تیږې جالۍ لګېدلي دي د جنوبي خوا ګنبده کښې ګنبدی ته د ننوتلو لیارا ودروازه ده او په دغه ګنبده دسروزرو کټورې دی وائی چه په دې ګنبده کښې دفیض طلب خان بنګښ قبر دی ، دده دوفات نه دوولس کاله وروسته ددې زیارت دروازه هم فیروز شاه تغلق جوړه کړېده په دې کښې دفیروز شاه کتیبه هم لګېدلې ده .

### ست پله :

دډیلي دپیر روشن چراغ زیارت ته نژدې «ست پله» نومی ځای پروت دی ، دا ځای په اصل کښې دفیروز شاه تغلق دښکار ځای و ، وائی هر کله چه دسلطان فیروزشاه زوی فتح خان مړشونو دی دخپل دغه هوښیار اولایق زوی په مرګ ډېر زیات خپه او متأثر شو ، لکه چه ددې غم دغلطولو دپاره په دغه ځنګل کښې تر څو کرو هونو پورې دیوالونه پورته کړ ای شول اوونی او بوټې وکرل شول او په دې ترتیب دبادشاه دپاره دښکار کولو ځای جوړ کړ ای شو ددې دېوال په منځ کښې یوه ډېره لویه کنده

او ناله هم وه ددي کندی دا و يو دوتاو دپاره په دغه ديوال کښې ا ووه
دروازې جوړې شوې وې او له دې کبله دغه ځای په ست پله نوم یاد
او مشهور شو یدی.

**کړکی مسجد:**

ست پلې ته نژدې «کړکی مسجد» دی په پخوانو زمانو کښې په دغه
ځای کښې «کړکی» نوم يو کلی وچه نن هم په يو ډير معمولی صورت او
شکل موجود دی، او په دې اساس دغه مسجد ددغه کلی په نوم يعنی
«کړکی» نوم مشهور شوی دی، ددې مسجد ودانی ډيره عجيبه وه دانی
ده او داسې عجيبه ودانی بې دگجرات (احمد آباد) څخه په بل ځای
کښې بيخی نه ده ليدل شوې، دا مسجد مربع او څلور گوټيځی دی او
څلورو واړو خوا و وته ئې دمربعو ضلعو په منځو کښې يو مربع د تاج
په ډول را ايستلی دی، دريو اړخونو ته ئې درې دروازې دی او
دقبلې اړخ ته ئې کومه دروازه نشته.

په دې مسجد کښې په سوو ډبر وستنې کار شو يدی په دې مسجد کښې په نهو ځايو کښې
نهه برجونه جوړ شو يدی او دهر برج لاندې څلور څلور ستنې لگولی شو يدی
سر بيره پر دې ستنو په دې مسجد کښې نورې ډيرې ستنې هم شته، ددې
مسجد په غولی او صحن کښې څلور چوکو نه دی، ددې مسجد دننه خوا
ډيره لوگړ تکه توره کړې ده وائی دا مسجد څکه داسې تک تور شو يدی
چه په ١٨٥٧ع کال کښې دانگريزانو له بيرې ډير خلق په دې مسجد کښې

ډېره شوې او تر ډېره وخته پورې ئې په دې مسجد کښې اوړونه بلکړي او پخلې ئې کړي وو.

**فیروز آباد ای دفیروز شاه کلا :**

دا حقیقت دوا ورې څرګند کړی دی چه دفیروزشاه تغلق ډهلی دفیروزآباد حدود، دې موجوده ډهلی سره ګډ اونښتی و.

او اندرپت، ګادی (غازی) پور، کوټ وا ړه، دشیخ ملک یار پران او ابابکر طوسی سرای، جادر امت ا ند هوتی، مقبرهٔ رضیه، بلبلی خانـه، موضع بهاری، قهـرو الاو سلطان پوراو نور په دې ډهلی کښې شامل وو.

فیروزآباد دراجوتا نو اوغوری پښتنو دډهلی نه پنځه کروه لرې ودان و، په دې ښار کښې اته معمولی مسجدونه وو او په دې معمـولی مسجدونو کښې به هم په یو یو مسجدکښې لس - لس زره لمونځ ګوزار ځائېدل، فیروزشاه په دې ښارکښې دمسافرو داستوګنې دپاره (۱۲۰) سرایونه ودان کړي و، دې پاچا (۲۹) کاله پاچاهي کړېده، دفیروزآباد د وروشیانو ډېر زیات شهرت دراود یو ددې ښار جامع مسجد اربل ددې مسجد مینار، دا مسجد په ۱۳٥٤ ع =کښې ودان شوی و.

**داشوګا مینار :**

دادېده مذهب دهیر ومها راجا اشوکاهغه مینار دی چه په دغه مینار دود تولی نړۍ دپاره دروغی او امن فرمانونه نقش کړي و، دغه مینار

په ۱۳۵٦ ع کال فیروزشاه تغلق دکوم ځای څخه راوړاو د فیروزآباد په کلاکښې ئې ښخ کړاو «مینارزرین» نوم ئې ور باندی کښېښود .

اشوك دچندرگیت زوی و ، دی لومړی د(شیومت) پیرو ؤ چه وروسته ئې بده مذهب خوښ کړدده د سلطنت حدود تر کشمیر او افغانستان پورې خپاره شوی وو ، کوم عبارتونه چه داشوکا په مینار کښل شویدی دهغو دلوستلو د پاره فیروزشاه ډېر برهمنان او پجاریان راوغوښتل مگر هیڅوك ئې په مطلب پوه نه شو البته یو برهمنی ورڅخه دومره مطلب وا خیست چه له دی عبارتونو څخه دیو عبارت مطلب دا دی چه :

« دابه هیڅوك دځای نه ونه ښورولای شی ترڅو چه په را تلونکی زمانه کښې یو سړی پا چا شی چه د هغه نوم به فیروزشاه وی » .

دقدم شریف زیارت:

دا زیارت په باره هند وراوکښې دی ؛ دا ځای هم سلطان فیروزشاه تغلق وداڼ کړیدی په دې ځای کښې دده د زوی شهزاده فتح خان قبردی د دې شهزاده په سینه یوه ډېره پرته ده چه په دغه ډېره د حضرت سرورکائنات رسول اکرم صلی الله علیهه وسلم دمبارك قدم نخښه ده ، دا ډېره دبغدا دخلیفه دتحفې په ډول سلطان فیروزشاه ته را لیږلې وه :

برزمینی که نشانی کف پای تو بود
سالها سجدهٔ صاحب نظران خواهد بود

په دې زیارت کښې د هندوستان د قومي شاعر خاقاني هند حضرت شیخ محمد ابراهیم ذوق زیارت هم دی.

**د سیتا رام بازار لوی مسجد:**

داعظیم الشان مسجد د ترکمان د دروازې او سیتا رام بازار په منځ کښې پروت دی، دا مسجد په ډیر جګ ځای پروت دی او د فیروزشاه وزیر «فیروز خان جهان» ودان کړی دی، د دې مسجد په ودانۍ او وه لکه روپۍ لګېدلې دی؛ دخان جهان قبر هم په دغه مسجد کښې دی چه دسنګ خارا نه جوړ شوید ی، دا مسجد درې دالانونه او صحن او کوچنې کوچنې برجونه لري چه ډیر ښکلي او قیمتي جوړ شوید ی. وائي فیروز شاه تغلق او د ده وزیر خان جهان د دې مسجد د ودانۍ نه وروسته دا اعلان کړی وچه که دا نسان لاس د دې مسجد ودانۍ ورانه او خرابه کړی نو بله خبره ده لیکن ارضي او سماوي آفات لکه زلزله او برق او تالند ه دې ودانۍ ته زیان او تاوان نشي رسولای.

په دې لړ کښې باید د احقیقت هم څرګند کړ ایشي چه «د چوبرجي مسجد، د کالو سرای مسجد، دبیګم پورې مسجد او نور ډیر مسجدونه دفیروز شاه تغلق وزیر خان جهان نوه ان کړیدي.

د سلطان فیروز شاه تغلق مقبره:

سلطان فیروزشاه دېرنیک پاچا وو د دزیارت په حوض خاص یاحوض علائی کښې دی چه اوس دیوړان کنډرپه شکل بدل شوید یا وحوض هم وران شوی او دکارنه وتلی دی، د دې زیارت جنوب خواته د ناستی ځایونه او ډیر عمارتونه جوړ شوی وچه اوس هغه ټول وران شوی او دکنډوا لو په شکل بدل شوی دی خواته د سلطان فیروزشاه زیارت دی، د دې زیارت په دروازه یوه کتیبه کینل شوې ده، گرا اوس هغه ماته شوید ه او نښی لوستلای؛ دغه زیارت د فیروز شاه زوی محمد شاه تغلق ودان کړی و.

# د پښتنو سید انو باد شاهانو یادګارونه :

د پښتنو سیدانو دشاهی کورنۍ بانی سید خضر خان و، دی ډیر مهربانه او حلیم باد شاه تېر شوی دی، دده زیارت د «خضر خان کی ګمټی» په نوم مشهور دی چه دجمنا سیند په غاړه دا و کهلي په سرحد د موجوده ډهلی نه شپږ کروه لرې پروت دی.

## دسلطان سید معز الدین مبارک شاه زیارت :

سلطان سید معز الدین مبارکشاه دخضر خان زوی ؤ دې پاچا په ۱۴۳۲ع =کال کښې مبارک آباد (مبارکشاه کا کوټله) ودان کړ، دا زړه ور او دیندار بادشاه دده غدار وزیر سرور الملک دلمانځه په حالت کښې په چاقو شهید کړ، ددې پاچاقبرا و زیارت د صفدر جنګ هوائی میدان ته مخامخ په لودی باغ (لودی ګارډن) کښې دی دده د قبر په څنګ کښې دده د لمسی سلطان سید محمد شاه بن سید فرید خان بن سید خضر خان قبر هم دی. سیدمحمدشاه د خپل نیکه په بدل کښې غدار وزیر سرور دار الملک وواژه. د اته اړخیزه مقبره ډیره ښکلی جوړه شوې ده.

# د لودي پښتنو یاد گارونه

## دسلطان بهلول لودي زيارت :

سلطان بهلول خان لودي چه دلودي خانه دان باني و، په فراح سکیت کښې وفات شو او دده مړی دده نامتو زوی نظام خان چه په سکند رلودي ئې شهرت در لود ډهلي ته راوړ او دپیرسید روشن چراغ ډهلي په خنگ کښې ئې ښخ کړ او یو ډېر شاندار عمارت ئې ور باندې ودان کړ، دا زيارت په یو وخت کښې ډېر عالي شان ځای و، مگر نن بیخي وران او په برباد حال پروت دی د تحفظ آثار قد یمه محافظین هم بیخي غافل دي او د مغربي پاکستان ځخه راغلي (شرنارتهيان) په دغه ځای کښې ډېره اوړا ته دي.

## دیوسف قتال زيارت :

دازيارت د کړکي مسجدپه خنگ کښې پروت دی داځای دسلطان سکندر لودي بن بهلول لودي په عصر کښې ودان شویدی:

## موتهه کي مسجد :

دامسجدپه ۱٤۸۸ کښې سلطان سکندر لودي ود ان کړد دې مسجد سره یو لوی حوض هم شته؛ په دې یوه کتیبه هم شته چه بیخي نښې لوستل کېدلای د مسجد له د روا زې ځخه معلومېږی چه دابه په یو وخت کښې ډېره عظیم الشانه دروازه وه.

دا عمارت داود یا نود زمانې په عمارتو نوکښې ډېر زیات شاندار عمارت دی .

**عیسی خان کی مسجد :**

ددې مسجد مقبره او دروازه په ۱۴۸۸ ع کښې ودان کړه شوې ده عیسی خان دلودی زمانې او عصر عظیم الشان اوذی شان امیر ؤچه ده پخپله دا مقبره په نظام پورکښې جوړه او ودانه کړه .

**د سکندر لودی مقبره :**

را تنلو رودو ته نږدې دصفدر جنگ د هوائی میدان په مخکښې لودی گاؤن (لودی باغ) نومې یو ځای دی چه په دغه ځای کښې د پښتنو سید انو با چهانو قبرونه هم شته ، دا علاقه په یو وخت کښې په خیرپور نوم یا دېدله په دې ځای کښې دافغانستان دسفارت خانې (۲٤ را تنلو ن) رود په خوا کښې دسلطان سکندر لودی بن سلطان بهلول مقبره ده چه دغه مقبره سلطان محمد ابراهیم شهید ودانه کړې ده ، دا مقبره ډېره شانداره مقبره ده او دلودی عصر دعمار تونو ډېره شاندار ه نمونه ده ، ددې په څنګ کښې نور هم څو برجونه شته چه په دغو برجونو کښې داودی خاندان نامتو اشخاص ښخ دی په دغو برجونو آیتونه لیکل شوی دی او ډېر کلک او مضبوط جوړ شوی دی ، دې قبرونو سره د لودیا نو یو ډېر ښکلی مسجد هم ؤ چه اوس بیخی وران شوی دی ، دا باغ اوس د سیل ډېر ښه ځای دی .

# دمور ي پښتنو يادگارونه

**دقطب الدين بختيار كاكي زيارت :**

دا زيارت دپښتنو په ډيلي قطب ( مهرولي ) کښې دی ، دا ځای پخوا دتشو خاو رو ډيرى و ، يو وار شير شاه سور ی دې خو اته دښکار د پاره راغى او دښکار په لړ کښې ئې دغه قبر په دغه خراب حالت وليد ، دی په دغه حالت ډير خپه او متا ء ثر شو او في الحال ر ځخه و يو ه ئې لو يه کلا راو گر ځو له چه خلك دباندی پېښې و باسی او دې ځای ته پښې لوځی رانوځی .

**پرانا قلعه :**

دې کلا ته خلك پر انا قلعه (زړه کلا) او دين پناه هم وائی دا ډيره پخوانی کلا ده کهځه هم مغلی همايو ن ددې کلاپه و دانه ولو پيل کړی وليکن داو دانی شير شاه سوری تکميل او تر سره کړه ؛ او ددې فصيلونه سليم شاه سوری په چونه پاخه جوړ کړل په دې کلا کښې دهغو بېکو ر و خلکو داستوگنې دپاره چه دمغربی پاکستان ځخه راغلی دی دکانگرس حکومت ډيـر کو رونه جوړ کړی دی چه په هغو کښې تقريباً پنځلس او يا شپاړ س ز ره تباه حال بې کوره خلك استو گنه او ژوندون کوی .

**شير شاهی مسجد :**

په همدې کلاکښې شير شاه سوری په ١٥٤١ ع کال کښې يو دا سی لوی او ډير ښکلي مسجد ودان کړی دی چه دهغه په عمارتونو کښې ئې ساری نه

دراود ، که څه هم دا دسنګ خارا څخه جوړ شویدی، لیکن دمخ خواته ئې سره ډبره او سور مرمر په داسې ښکلي ترتیب لګولې شویدی چه د ډېر ښکلي ایسي ددې مسجد په محراب او څنډو دقرآن مجید آیتونه کېنل شویدی او مسجد ته دتللو دپاره یوه ډبره ښه او شانداره لیاره هم شته او په منځ کښې ئې دچت دپاسه یوه ډبره شانداره ګنبد ، هم جوړه شویده چه،ګرد چاپېره ور څخه دوه شانداري چترۍ هم جوړې شوې وې چه اوس نړېدلي دي ، ددې مسجد په صحن او غولي کښې یو حوض دی چه، دتر ممیم ور دی ، په همدې صحن کښې چه د۱۹۰۷ کال دجنورۍ په ۲۷ نېټه دافغانستان پاچا حبیب الله خان راغی نو په دغه صحن کښې ئې یوه ځا کینله چه تر اوسه پورې شته .

**شیر منډل :**

په دې کلا کښې دشیرشاه دعصر دوهمه ودانۍ د «شیر منډل» ودانۍ ده ، دا دوه منزله عمارت هم دشیرشاهي مسجد نه دشمال خواته شیرشاه ودان کړی دی ، دا عمارت په سرو ډبرو ودان شویدی او داهغه عمارت دی چه همایون له دې عمارت څخه غورځېدلی او مړ شویدی .

**شیر ګړه :**

دپرانې قلعه ، دباندې دمتهراو د پهغاړه لمر پر یوا ته خواته یوه ډبره او یه دروازه ده چه له دغې دروازې څخه خلک اندیا ګیټ ته ور ننوځي ، دادهغه ښار دروازه ده چه دغه ښار په « شیر ګړه » نوم

شیرشاه سوري ورادان کړی و ، ددې ښار دفصیل څه برخه اوس هم ولاړه ده ، داعلاقه دشیرشاه مسس په نوم یادیږي او په دې منطقه کښې دپاکستان سفارت خانه ده .

دعیسی خان مقبره :

دپرانی قلعه نه یو میل لرې دهمایون دمقبرې په خوا کښې دسړک په غاړه دعیسی خان سوري کلی دی او په دې کلی کښې دعیسی خان سوري زیارت او مسجد دی ، عیسی خان سوري دشیرشاه سوري ډیر نژدې ملګری ؤ او دده دخبری څخه به ئې بیخی انکار نه کاوه ، واقع هرکله چه مغل همایون د شیرشاه سوري په مقابل کښې ماتې وکړه او وتښتېد نو دده سپه سالار بیرم خان ګرفتار او شیرشاه ته وړاندې کړای شو په دغه وخت کښې عیسی خان سوري هم په دربار کښې حاضر و ، ده دشیرشاه څخه د بیرم خان دخلاصولو غوښتنه وکړه او شیرشاه دی فی الحال خوشی اورها کړ لیکن هرکله چه همایون په دوهم وار دهلی ته دفاتح په حیث بیرته راغی نو په دغه وخت کښې شیرشاه سوري او دده نامتوزوی سلیم شاه یا اسلام شاه دواړه وفات شوی وو لیکن عیسی خان په دغه وخت کښې ژوندی و ، او بیرم خان ډیر زیات اقتدارا رخاوند و ، په دې وخت کښې بیرم خان غوښتل چه عیسی خان ده ته راشی او دی په دغه وسیله په دې وخت کښې دعیسی خان حق اوبدل پوره ځای کړی لیکن دغه د غیرت

او پښتو نو لیړ مجسمه عیسی خان بیخي دخپل ځای څخه و نه خوځېدا د همدغه ننګیالي پښتون زیارت او مقبره ده :

په دغه مقبره کښې دننه دلمر پر یو اته خواته د وړ ری په یوه کتیبه د قرآن مجید آیتو نه کیښل شو یـدي او د آیتونـو لانـدې د دې زیارت د ودانیو کال او نیټه او دهغه شخص نوم دی چه دغـه آیتونه ئې کیښلي دي ، د دې کتیبې دکتاو څخه معلومیږي چه داځای پخپله عیسی خان سوري په ۹۵۴ ع کال کښې دسلیم شاه سوري په عصر او دوره کښې جوړ او ودان کړی دی :

### د عیسی خان سوري باغچه :

د ننه یوه ارته او پراخه او پخه احاطه ده او په دغه احاطه کښې لږ ی ونې دي دغه ځای او احاطه دعیسی خان دباغچې په نوم یادیږي وائې دا دهغه عیسی خان سوري باغچه وه چه دشیر شاه سوري نامتو او فداکار ملګری او پوه مشاور و :

### سلیم ګړه :

دا کلا دلال قلعه څخه دبا ندې شمال مشرق ار خ ته د جمناسیند په غاړه ودانه شوېده ، دا کلا لال قلعه ته د ومره وړته ده چـه لال کلا ددغې کلا یو جز معلو میږي ، دا کلا سلیم شاه یـا اسلام شاه عادل د شیرشاه سوري زوی ودانه کړېده ، حقیقت دادی چه په کومه محکه چه لال قلعه او سلیم ګړه ، شیرګړه ولاړا وودان دی په دې

ته وله منطقه سلیم شاه دسلیم ګړد و دانه واو د پا ره یوه نڅشه جوړه کړې وه او دهغې کلا په و دانه شوې برخه ئې سلیم ګړه نوم اېښودلی و ، په پاتې نوره منطقه او برخه شاهجهان لال قلعه جوړه او ودانه کړه ؛ سلیم شاه دستر ي مشهور فاتح او زړور پښتون شیرشاه سوري زوی دی ، له دې کبله چه شیرشاه سوري د هندوستان څخه شړلی او ایستلی و نو مغلو په هندوستان کښې د پښتون او په تېره د شیرشاه د کورنۍ دپښتنو استوګنه د ښمنی ګڼله او دهمدې دښمنۍ په اساس د وی د شیرګړه نوم په نورګړه نوم دې د پاره بدل کړ چه په هندوستان کښې پښتو څخه چه د پښتون نوم هم پاته نشي ، مغلي جهانګیر دشمال لوري ته یو پل جوړ کړ او ددغه پل په ذریعه دشیرګړ او لال قلعه په منځ کښې د تګ او راتګ لار او وسیله پیدا او جاري شوه دا ډېر ټینګ او مضبوط پل و .

د سلیم ګړه نومي کلاسره ډېر زیات تاریخي روایتونه تړلي دي ، مغلو په دې کلا کښې خپل دښمنان او مخالفین

د ښند یا نو په دوول ساتل غلام قادرخان روهیله پښتون هم په همدې کلاکښې دې د پاره بندی او خصی کړ شوی وچه په لال قلعه کښې دمغلو خدمت وکړي، او هرکله چه غلام قادرخان(۱) روهیله پښتون دلال قلعه نه وتښتېداو دتښتېدلو نه وروسته بېرته دفاتح په حیث دډیلی ته راغی، نو ده مغل شاه عالم په همدې سلیم ګړه نو می کلاکښې بندی کړ.

---

(۱) غلام قادر پښتون د نجیب آباد او سېدونکی وهرکله چه شاه عالم نجیب آباد ونیوا و برباد ئې کړ نوغلام قادر ئې ژوندی ونیوډیلی ته ئې راووست او خصی ئې کړ او خپل خدمت به ئې وربا ندی کاوه کله چه د غلام قادر لاس پر برسو نوله شاه عالم څخه ئې خپل بدل په دې دول واخیست چه د ده سترګی ئې وا یستلې او وروند ئې په سلیم ګړنوی کلاکښې بندی وسا ته . . .



